


د پوهنې وزارت
د تعلیمي نصاب د پراختیا، د ښوونکو د روزنې او د ساینس د مرکز معینیت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف لوی ریاست


# د ښوونکي کتاب

# د جغرافيې د تدریس لارښود

## اتم ټولگی





د چاپ کال: ۱۳۹۰ هـ. ش






د پوهنې وزارت
د تعلیمي نصاب د پراختیا، د ښوونکو
د روزنې او د ساینس د مرکز معینیت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي
کتابونو د تالیف لوی ریاست

# د ښوونکي کتاب

# د جغرافیې د تدریس لارښود

## اتم ټولګی

د چاپ کال : ۱۳۹۰ هـ.ش



**مؤلفان**:

- د سر مؤلف مرستیال محمد رفیق (مومند)
- د سرمؤلف مرستیاله شکیلا "حبیب رحیمي"

**علمي او مسلکي اډیټ**:

- پوهنمل دوکتوراندوس رحمت څواکمن

**د ژبې اډیټ**:

- حضرت گل ارچیوال

**دیني، سیاسي او کلتوري کمېټه**:

- ډاکټر عطاء الله واحدیار د پوهنې وزارت ستر سلاکار او د نشراتو رئیس.
- حبیب الله راحل د پوهنې وزارت سلاکار د تعلیمي نصاب د پراختیا په ریاست کې.
- مولوي قیام الدین کشاف
- استاد محمد آصف کوچی

**د څارنې کمېټه**:

- دکتور اسدالله محقق د تعلیمي نصاب، د ښوونکو د روزنې او د ساینس مرکز معین
- دکتور شیر علي ظریفي د تعلیمي نصاب د پراختیا د پروژې مسؤول
- د سرمؤلف مرستیال عبدالظاهر گلستاني د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف لوی رئیس

**طرح او ډیزاین**:

- حمیدالله غفاري





# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی — دا عزت د هر افغان دی

کور د سولې کور د تورې — هر بچی یې قهرمان دی

دا وطن د ټولو کور دی — د بلوڅو د ازبکو

د پښتون او هزاره وو — د ترکمنو د تاجکو

ورسره عرب، ګوجر دي — پامیریان، نورستانیان

براهوي دي، قزلباش دي — هم ایماق، هم پشه یان

دا هیواد به تل ځلیږي — لکه لمر پر شنه آسمان

په سینه کې د آسیا به — لکه زړه وي جاویدان

نوم د حق مو دی رهبر — وایو الله اکبر وایو الله اکبر

**بسم الله الرحمن الرحیم**

## د پوهنې د وزیر پیغام

## گرانو استادانو او ښوونکو،

ښوونه او روزنه د هر هېواد د پراختیا او پرمختګ بنسټ جوړوي. تعلیمي نصاب د ښوونې او روزنې مهم توکی دی چې د علمي پرمختګ او ټولنې د اړتیاوو له مخې چمتوکیږي. څرګنده ده چې علمي پرمختګ او ټولنیزې اړتیاوې تل د بدلون په حال کې وي. له دې امله لازمه ده چې تعلیمي نصاب هم د وخت له غوښتنوسره سم علمي او رغنده پراختیا ومومي. البته نه ښایي چې تعلیمي نصاب د سیاسي بدلونونو او د اشخاصو د نظریو او هیلو تابع شي.

د ښوونکی د لارښود داکتاب چې نن ستاسو په لاس کې دی، پر همدې بنسټ چمتو اوترتیب شوی دی. د تدریس د نویو میتودنو له مخې فعالیتونه او معلوماتي مواد په کې ورزیات شوي دي چې په ډاډ سره به د زده کړې په بهیر کې د زده کوونکو د فعال ساتلو لپاره ګټور او اغېزمن وي.

هیله من یم د دې کتاب منځپانګه، چې د فعالې زده کړې د میتودونو د کارولو له لارې تالیف او چمتو شوې، ستاسو درنو استادانو د ګټې وړ وګرځي. له فرصت څخه په استفادې د زده کوونکو له میندو او پلرونو څخه غوښتنه کیږي د خپلو لوڼو او زامنو په باکیفیته ښوونه او روزنه کې پرله پسې مرسته وکړي چې په دې توګه د پوهنې د نظام موخې او هیلې ترسره شي او ځوان نسل او هېواد ته ښې پایلې او بریاوې ور په برخه کړي.

زموږ ګران استادان او ښوونکي د تعلیمي نصاب په رغنده پلي کولو کې ستره دنده او درونه مسؤولیت لري.

د پوهنې وزارت تل زیار کاږي چې د پوهنې تعلیمي نصاب د اسلام د سپېڅلي دین له بنسټونو او ارزښتونو، د ټولنې د څرګندو اړتیاوو، ملي ګټو او وطنپالنې له روحیې او د ساینس او تکنالوژۍ له نوو علمي معیارونو سره سم پراختیا ومومي.

ددې سترې ملي موخې د تر لاسه کولو لپاره د هېواد له ټولو علمي شخصیتونو، د ښوونې او روزنې له پوهانو او د زده کوونکو له میندو او پلرونو څخه هیله لرم چې د خپلو نظریو او رغنده ګټورو وړاندیزونو له لار ې زموږ له مؤلفانو سره د درسي او د ښوونکي د لارښود د کتابونو په لا ښه تالیف کې مرسته وکړي.

له ټولو هغو پوهانو څخه، چې ددې کتاب په چمتو کولو او ترتیب کې یې برخه اخیستې او همدارنګه له ملي او نړیوالو درنو موسسو او نورو ملګرو هېوادونو څخه، چې د نوي تعلیمي نصاب په چمتو کولو او تدوین او د درسي او د ښوونکي د لارښود کتابونو په چاپ او وېش کې یې مادي یا معنوي مرسته کړې ده، مننه او درناوی کوم او د لا نورو مرستو هیله یې لرم.

ومن الله التوفیق

فاروق وردک

د افغانستان د اسلامي جمهوریت د پوهنې وزیر



# فهرست

# لومړی فصل

# د جغرافيې پوهنې د درسي پروګرام ټولګه

## ۱ـ سريزه

### د ښوونې او روزنې اهميت او د ښوونکو دنده

پوهان په خپل وار سره ښوونه او روزنه په جلا جلا توګه تعريفوي. يو شمير ښوونه او روزنه د پخوانيو د فرهنګـــي ميـــراث انتقال، ارزيابي او پراختيا بولي. ځينې بيا ښوونه او روزنه په زده کوونکي کې د وروستيو صفتونو او ټاکلو قابليتونو رامنځتـــه کيدل بولي. يو شمير ښوونه او روزنه په شخص کې د پټو استعدادونو څرګندول او يا په روښـــانه ټکـــوکې د شـــخص پـــه استعدادونو کې د عمل رامنځته کول شميري. د ښوونې او روزنې يو شمير مربيان ښوونه او روزنه په يوه ځانګړې ټولنه کـــې د ژوند کولو لپاره د يوه شخص آماده کول او د هغې ټولنې د ادبياتو، رواجونو، عقيدو او ځانګړو فکرونو سره د هغه آشـــنا کول ګڼي. نن ورځ د ښوونې او روزنې د اهميت په هکله د لويو پوهانو له اړخه خورا ګټورې نظريې څرګندې شوې دي چې په دې سريزه کې د هغوی څرګندول ځانګړی اهميت لري.

ځينې مربيان ښوونه او روزنه په يوه شخص کې د بدني پراختياوو د بيلابيلو اړخونو لکه: جسماني، عقلي، ټولنيزې، کاريزې، معنوي، هنري، اخلاقي او نورو برخو لارښوونه بولي.

جان ديوي ښوونه او روزنه په تجربو کې له سره کتنه او په داسې توګه د تجربو پلي کول بولي چې په شخص کې د لاډيـــرې ودې زمينه برابره کړې.

پورتني ټول تعريفونه د ځينو اړخونو له پلوه سم دي، مګر په ځانګړې توګه بسنه نه کوي. د ښوونې او رزونې مربيان لـــه زده کوونکو څخه ډيرې هيلې لري. هغوی له زده کوونکو څخه هيله لري چې د پوهنې او هنر د زده کړې ترڅنګ د هيـــواد لـــه فرهنګ، ادبياتو او رواجونو سره آشنا شي او ددې ترڅنګ د ټولنې سره د جوړښت او په بريالیتوب سره ټولنې ته د ننوتلـــو لپاره ځانګړي خويونه، مهارتونه، کتنې اووړتياوې تر لاسه کړي، په پايله کې وکولای شي چې د استعدادونو د غوړيـــدو پـــه هکله خپله وړتيا څرګنده او د معاش د ترلاسه کولو او د خپلې ټولنې د اقتصادي اړتياوو د بشپړه کولـــو لپـــاره عـــادي او مسلکي وړتيا تر لاسه کړي، له بله پلوه هيله ده چې د زده کوونکو بدنې پراختياوې چې د ټولنپوهانو، ارواح پوهانو، ژونـــد پيژندونکو، فيلسوفانو او اخلاق پوهانو له اړخه په ښنه شوي دي، د ښوونې او روزنې د لاسته راوړنې له برکته به لارښـــوونه، وده او پراختيا ومومي.

د اسلام د مقدس دين له نظره د ښوونې او روزنې څخه مقصد ديوه کامل انسان روزنه ده، او کامل انسان هغـــه څـــوک دې چې د هغه ټول بدني اړخونه د هغه د قدرت په اندازه وده او بدلون ومومي. د ښوونکو ترټولو ستره دنده داده چې په انسانانو کې بدني اړخونو ته ودهورکړي ځکه چې درسي بيلابيلې موضوع ګانې هره يوه د انسانانو د وجود د بيلابيلـــو اړخونـــو د څيړنې او روزنې په لټه کې دي.

د ښوونې او روزنې څخه مقصد د بيلابيلو حقيقتونو او واقيعتونو څخه د زده کوونکي د ذهن ډکول نه دي. په لازمي توګـــه ښه زده کوونکي هغه څوک نه دی چې زيات معلومات يې ترلاسه کړيدي، بلکې ښه زده کوونکي هغه څوک دي چې د هغه بدني اړخونو په ټولو برخو کې وده کړې وي او دايې زده کړې وي چې په څه ډول زده کړه وکړي. دا ډول کس پـــه ټـــول عمر کې د زده کړې په لټه کې وي. د ښوونې او روزنې پروسه دا نه ده چې يوازې د ځانګړو زده کوونکو روزنې ته پاملرنـــه

وشي او د نورو زده کوونکو په برخه کې بې پروايي وشي. د سمې ښوونې او روزنې د سيستم موخــه د ټولــو اســتعدادونو روزنې ته پاملرنه ده. د سمې ښوونې او روزنې څخه مطلب د ښوونې او روزنې د ټولو موخو څېړنو ته پاملرنه کول دي. لــه بله پلوه يو پوه او هوښيار ښوونکی د زده کړې په ټوله دوره کې د ښوونې او روزنې د ټولو موخو د عملــي کولــو لپــاره د درسي بيلابيلو کړنو له لارې يوې ټاکلې کړن لارې ته پام کوي. زده کوونکي د تنکۍ ځوانۍ په دوره کې د يوه ډول خاصــو ځانګړتياوو در لودونکې وي.

په دې دوره کې زده کوونکي له بدني پلوه د بدلونونو يو نوي پړاوته ورننوځي. په دې دوره کې يــو لــه بــل ســره د زده کوونکو او همزولو اړيکې ځانته يوه ځانګړې بڼه نيسي. د ټولنيزو کارونو د سرته رسولو او د خلکو او قومونو د ادبيــاتو او رواجونو د پيژندلو لپاره د زده کوونکو چمتووالی زياتره د وړکتوب له دورې څخه وي. په دې دوره کې تنکي ځوانان لــه عاطفي پلوه د ښو کارونو په سرته رسولو کې د نورو سره له مرستې خوند اخلي. هغوی خوښوي چې خپلې زيــاتره اړونــد چارې په مستقله توګه پخپله سمبال کړي. هغوی په دې دوره کې د طبيعت د رازونو د درک او زده کړې لپاره لــه ځانــه ځانګړې علاقه څرګندوي. په تنکيو ځوانانو کې هنري او د ښکلا پيژندلو شوق د وړکتوب له دورې څخه وي. تنکي ځوانان خوښوي چې خپل ځانونه په بيلابيلو شکلونو کې وښيي. هغوی د زده کړې لپاره بيلابيلې اسانتياوې برابروي. کله نا کلــه د زده کوونکو ځينې کارونه د ښوونکي لپاره خوښوونکي نه وي خو دا اسانتياوې د روزنې له پلوه ځانګړې اهميت لري. يــو پوه او هوښيار ښوونکي پاملرنه کوي چې له دغو اسانتياوو څخه د زده کوونکو د بدني اړخونو په بيلابيلــو لکــه: علمــي، ټولنيزو، اخلاقي، عاطفي، ديني، بدني، عقلي او نورو برخوکې ګټه واخلي.

# په افغانستان کې د ښوونې او روزنې عمومي موخې

په افغانستان کې د ښوونې او روزنې عمومي موخې، افغاني ټولنې ته په پام او د علم او پوهې هــر اړخيــزې پراختيــا او د خلکود زده کړې او روزنې لپاره اړينې ګڼل کېږي. لاندې ټکي د ښوونې او روزنې موخې دي:

## الف ـ عقيده وي او اخلاقي موخې

ـــ د اسلام د مقدس دين پر بنسټونو د ايمان اوباور پياوړې کول.
ـــ د قران اوپيغمبر (ص) د سنتو په رڼا کې د هر ډول افراط او تفريط پرته، داسلامي ليد پراختيا.
ـــ د الله پيژندنې په منظور د ځان پيژندنې د روحيې رامنځته کول.
ـــ په نفس او اخلاقي ارزښتونو باندې د روحيې پياوړي کول.
ـــ د نظم او دسپلين د روحيې منځته راوړل او د قانوني ارزښتونو رعايتول.
ـــ د ښوونيزو، روزنيزو او ټولنيزو ارزښتونو په هکله د مسؤوليت د احساس د روحيې پياوړي کول.

## ب ـ علمي او ښوونيزې موخې

د زده کړې د پړاوونو په پايله کې چې د تعليمي نصاب او له تعليمي نصاب څخه بهر نورو کړنو له املــه ترســره کېږي، زده کوونکي خپله بنسټيزه او اړينه پوهه ترلاسه او لوړو، فکري وړتياوو ته پراختيا ورکوي، په همدې ســبب لانــدې غوره علمي او ښوونيزې موخې په پام کې نيول شوي دي:

ـــ د زده کړې د مهارتونو ترلاسه کول او پیاوړي کول: لکه اوریدل، خبرې کول، لوستل، لیکل او په رسمي او بهرنیو ژبــو کې د عددونو او لیک په کارول.
ـــ د زده کړې د مهارتونو زده کول: د زده کړې په پړاو کې د خپل ځان ارزونې او دهغې د نتــایجو لپــاره د اســتعدادونو پراختیا.
ـــ په علمي، کلتوري او مهارتي برخوکې د ژور فکر کولو، مطالعې، څیړنو او نوښت د وړتیا غښتلي کول.
ـــ د اړتیا وړ فردي او ټولنیزو مهارتونو ترلاسه کول او د پوهنو او معاصرې ټکنالوژۍ د فنونو زده کول.
ـــ د ځاني او ټولنیزو لانجو او ستونزو د حل لپاره د اړونده وړتیاوو ترلاسه کول.

## فرهنګي او هنري موخې:

ـــ د فرهنګ او هنر (لاسي صنایع، ستنې ګنډنې، خامک ګنډنې، اوبدنې، انجینري، رسامي، خطاطي، انځــورګري، د کــور ښکلي کول او موسیقي) پېژندل او نړیوال سالم هنرونه او همدغه راز د ښکلا پېژندنې ذوق او هنری اســتعدادونو پالنــه او لارښوونه.
ـــ د افغانستان او نړۍ د ملي او اسلامي تاریخ کلتور او تمدن څخه خبرتیا.
ـــ د افغاني ټولنې د ارزښتونو ساتنه او د کلتور او غوره آدابو او دودونو وده.
– دجمعي او انفرا دي فعالیتونو له لیارې دهنری وړتیا وو پراختیا.

## مدني او ټولنیزې موخې

د لاندې موخو تعقیبول د زده کونکو د موقف په وده کې د یوې کورنۍ، ځای، سیمې، ملي او بین المللي ټولنې د غــړو پــه توګه مرسته کولای شي:
ـــ د ملي نوامیسو د ساتنې د روحیې پیاوړي کول، د برابرو حقونو او اسلامي اخلاقو پر بنسټ د کورنیــو اړیکــو پیــاوړي کول.
ـــ د ورورګلوۍ، همکارۍ، سولې، ټولنیز عدالت، ملي او بین المللي پیوستون د روحیې پیاوړي کول.
ـــ د خیر غوښتنې او د لوړو اخلاقــي فــضایلو د روحیــې پیاوړتیــا، د جنــګ او انــسان وژنــی څخــه کرکــه، او د نشه یي موادو سره مبارزه.
ـــ د قانون په وړاندې د احترام د روحیې پیاوړتیا، د قوم، جنس، عمر، اقتصادي او ټولنیز موقف، سیاسي تړاو او نورو پرته د ټولو له قانوني حقونو څخه ملاتړ.
ـــ په دیني، فرهنګي، ټولنیزو او اقتصادي کړنو کې د ګډون د روحیې پراختیا.
ـــ په سوله ییزه او جوړوونکې توګه د دښمنیو او لانجو د حلولو د روحیې رامنځته کول.
ـــ د صبر او تفاهم د فرهنګ د روحیې رامنځته کول.
ـــ د نړیوالې ټولنې له علمي او تخنیکي تجربو او لاس ته راوړنو څخه د ګټې اخستنې د روحیې پیاوړي کول.
ـــ انساني کرامت او بشري حقونو ته د درناوي د روحیې پیاوړتیا.
ـــ د ښځو انساني مقام ته د درناوی د روحیې وده او پراختیا او د هغوی له حقونو څخه ملاتړ.
ـــ د لویانو، ګاونډیانو او هیوادوالو د حقونو او د مدني ټولنې د موازینو د رعایتولو د روحیې پیاوړتیا.

### اقتصادي موخې

ــ د ټولنې د پراختيايي او اقتصادي اړتياوو او له کورني اقتصاد سره د هغوی اړيکو درک کول.

ــ د کار د اهميت او ارزښت معلومول او په ګټورو کسبونو کې د ګډون د روحيې پياوړتيا.

ــ د سپما او قناعت د روحيې منځته راوړل، د تجمل پرستۍ او د اړتياوو پرته لګښتونو څخه پرهيز کول.

ــ د هيواد د اقتصادي زيرمو او د هغو د راويستلو اوورڅخه د ګټې اخيستلو د لازمو لارو چارو حل او پيژندنــه او د ملــي شتمنيو او طبيعي زيرمو د ساتنې د روحيې روزنه.

## د منځنۍ دورې (۷ـ۹) ټولګي عمومي موخې

هغه زده کوونکي چې لومړنۍ دوره په برياليتوب سره سرته ورسوي، د خپلې خوښې پر بنسټ په منځنۍ ښوونيزه او روزنيــزه دوره کې شامليږي.

ددې دورې عمومي موخې د زده کوونکو د استعداد او خوښۍ او د هيواد د اړتياوو او امکاناتو سره سم د ژوندانه د بيلابيلو لورو ټاکنه ده. ددې دورې موخې په لاندې توګه په پام کې نيول کيږي:

۱ــ د تيرو ښوونيزو او روزنيزو دورو د لاس ته راوړنو پياوړتيا او د راتلونکې دورې لپاره چمتوالی.

۲ــ د معلوماتو، پراختيا او ديني، اخلاقي او بنسټيزو عقيده وي چاروته بشپړه پاملرنه او د اسلامي زده کړو سره پــه ښــه توګه آشنايي.

۳ــ د الله (ج) سره د ډيرې پيژندګلوۍ په خاطر د ځان پيژندنې د روحيې پراختيا.

۴ــ په بيلابيلو درسي څانګو کې د زده کوونکو د استعدادونو په ګوته کول.

۵ــ د چاپيريال ساتنې، طبيعي قوانينو، علومو او انساني پرمختللو تجربو په هکله د شــاګردانو د معلومــاتو او ځيرکتــوب پراختيا چې په ساينسي مفاهيمو وسايلو او بنسټونو باندې ولاړوي.

۶ــ په هيواد کې د رسمي ژبو متوازنه وده، د مورنۍ او بهرنۍ ژبو پياوړتيا او په تحريري او تقريري توګه، موخو ته د رسيدو لپاره د زده کوونکو د علمي سويې لوړول.

۷ــ د ورورۍ، مرستې، سولې، ملي يووالي، د ناروا جګړو او تروريزم څخه د کرکې، د نشه يي توکو پــه مقابــل کــې د مبارزې او د تبعيض او تعصب پرځای سالمو او روا سياليو ته د زده کوونکو د هڅونې د روحيې پراختيا.

۸ــ په زده کوونکو کې د خوښې او استعداد سره سم د کسب او مسلک د ټاکلو لپاره د پريکړې کولو د روحيې پياوړتيا.

۹ــ د مسوولیت منلو د روحيې پالنه او په ديني، کلتوري او ټولنيزو فعاليتونو کې د زده کوونکو د معلوماتو پراختيا.

۱۰ــ د بيلابيلو علمي چارو د برابرولو لپاره دزده کوونکو د کار او زيار د ليوالتيا پالنه.

۱۱ــ د زده کړې په پړاوونو کې د ځان سنجونې د مهارتونو پراختيا.

۱۲ــ له خپلې جسمانې روغتيا څخه ساتنه.

۲ــ په ښوونځي کې د درسي پروګرام معرفي

## په منځنۍ دوره کې د جغرافيې د علم د زده کړې ارزښت

د پوهنې وزارت دنده لري چې د هيواد بچيان باخبره او متمدنه انسانان وروزي، او د دې لپاره اړتيا ده چې زموږ ګران زده کوونکي د زده کړې په دوره کې د علومو او رياضي د ځانګو د پيژندنې پرته بايد له خپل دين، اخلاقو، تـــاريخ، مـــدنيت او شاوخوا جغرافيې سره هم په سمه او ژوره توګه اشنا شي.

د هيواد د تاريخ مطالعه له يوه پلوه زده کوونکي له تيرو علمي، ادبي او سياسي وياړنو سره اشنا کوي او هغوی ته تـــاريخي هويت ورکوي، او د تاريخي پيښو او جرياناتو په هکله د زده کوونکي لېوونکې ذهن ارزونې او پلټنې ته هڅوي او هغوی تـــه وړتيا ورکوي چې خپلې ورځنۍ پيښې او کړنې په سمه توګه تحليل او و ارزوي.

په نننۍ نړۍ کې چې يو شمير يې د نړيوال کلي په نوم يادوي ماهر انسان بايد نه يوازې له خپل کلي، ښار او هيواد سره اشنايي ولري، بايد د نړۍ ټول هيوادونه هم و پيژني او د بيلابيلو سيمو او هيوادونو په طبيعي، اقليمي، بشري، اقتصادي، او سياسي ځانګړتياوو باندې پوه شي. هغه پوهه چې دغه ډول اړتياوې پوره کولای شي له جغرافيې څخه عبارت ده .

د جغرافيې زده کړه زده کوونکي له هيواد، سيمې، نړۍ او آن له لمريز نظام او سيارو سره اشنا کوي.

انسانان د لاربنوونکي غريزه يې قدرت در لودونکې دې چې ترڅو په غريزه يي توګه منظم شي، پرته له دې هغوی بايد لـــه ارزښتونو، مقرراتو، نښانونو او قوانينو څخه چې په يوه ځانګړې ټولنه او يا ټولو انساني ټولنو کـــې د منلـــو وړ وي، پيـــروي وکړي. د قواعدو او ضوابطو دا ټولګه دومره پراخه اوپيچلې ده چې په ښوونځيو کې ورته په رسمي توګه د زده کړې اړتيـــا ده. زموږ اولادونه بايد د منل شويو ټولنيزو اصولو او ارزښتونو سربيره د هيواد له رسمي قوانينو سره هم اشـــنايي پيـــداکړي ترڅو يو ازاد او د عزت او انساني کرامت ژوند ولري.

## - جغرافيه څه ته وايي؟

د انساني پديدو او طبيعي موضوعګانو ترمنځ د اړيکو پيداکولوته جغرافيه وايي. جغرافيه انساني او طبيعي متقـــابلې اړيکـــې څيړي او دځمکي پرمخ د انسان لپاره اسانتياوې برابروي.

همدغه راز د جغرافيې پوهه د ځمکې د سطحې له عناصرو او زيرمو څخه هم بحث کوي. په حقيقت کې جغرافيه هـــم لـــه طبيعت (اقليم، طبيعي زيرمو، غرونو، سيندونو، سمندرونو، دښتو، حيواناتو، واښو، ځنګلونو او ...) او همدا راز لـــه بـــشري اړوندو چارو (ټولنې، نفوس، هيوادونه، نژادونه، ژبې، اړيکې او ليږدونې) او په همدغه توګه د انسان او طبيعـــت اړيکـــې (د چاپيريال ساتنې اړوند مسألې) او د ځمکې له زيرمو څخه د منظمې ګټې اخيستنې له انساني پروګرامونو څخه بحث کوي.






**د جغرافيې علم چې د انسان اړيکې له چاپېريال او پر يوبل باندې د هغوی اغيزې تر مطالعې لاندې نيسي په دوو ځانګړو برخو ويشل کېږي:**

**۱ـــ فزيکي (طبيعي) جغرافيه: طبيعي پديدې او پر انسان باندې د هغوی اغيزې مطالعه کوي.**

**۲ـــ بشري (انساني) جغرافيه: بشري پديدې او پر طبيعي چاپېريال باندې د هغوی متقابله اغيزې مطالعه کوي.**

**طبيعي جغرافيه له لاندې علومو سره اړيکې لري:**

**ـــ خاوره پيژندنه، هايدرولوژي (اوبه پيژندنه )، هوا پوهنه، اقليم پوهنه، بيولوژي، جيولوژي او نباتي علوم.**

**بشري جغرافيا له لاندې علومو سره اړيکې لري:**

**ـــ نفوس پيژندنه، انسان پيژندنه، ټولنپوهنه، سياسي علوم، اقتصاد، تاريخ او حتا ګرځندوی (توريزم).**

**همدارنګه جغرافيه د يو ډول ځانګړو متممو فنونو درلودونکې ده چې له فضايي علومو، هندسې، کارتوګرافي، GIS (د جغرافيايي معلوماتو سيستم) او نورو سره اړيکې لري.**

## **د جغرافيې د علم د زده کړې اهميت:**

**په نني نړۍ کې چې ځينې يې د نړيوال کلي په نوم يادوي، هر څوک بايد نه يوازې خپل هيواد و پيژني بلکې د نورو سيمو او هيوادونو پر طبيعي، اقليمي، بشري، اقتصادي او سياسي ځانګړتياوو باندې هم پوه شي. هغه علم چې کولای شي يادې شوې اړتياوې بشپړې کړي، جغرافيا ده.**

**داچې انسان د ځمکې پرمخ ژوند کوي، نو د ځمکې پرمخ د طبيعي او انساني زيرمو او په همدې توګه دهغو د ويش په هکله بيلابيلو معلوماتو ته اړ دي. د جغرافيې مضمون د طبيعي او انساني زيرمو د ويش او موقعيت په هکله څيړنې او معلومات وړاندې کوي، نو لازمه ده چې د ښوونځي په بيلابيلو دورو کې د جغرافيې مضمون تدريس شي.**

جغرافيايي پوهه به له زده کوونکو سره مرسته وکړي، ترڅو د خپل هيواد له حدود و او موقعيت سره آشنايي پيداکړي، لويې وچې او بيلابيل هيوادونه و پيژني، د هيواد او نړۍ له اقليم، اوبو او هوا څخه خبرشي. د خپل هيواد او نړۍ طبيعـــي زيرمـــې وپيژني.

د خپل هيواد او نورو هيوادونو د نفوسو د شميرې او ويش پر څرنگوالي پوه شي. د جغرافيې د علم د لوستلو په مرســـته بـــه زده کوونکي وکولای شي چې په خپلو اقتصادي، ټولنيزو او سياسي چارو کې په سمه توگه پريکـــړه وکـــړي او پـــه خپـــل راتلونکي ژوند کې ډير برياليتوبونه ترلاسه کړي.

## د جغرافيې د زده کړې موخې

د جغرافيې مضمون بايد د زده کوونکو لپاره د افغانستان پيژندنې او يووالي سبب شي او له گاونډيو هيوادونو سره يې اړيکې پياوړي کړي.

د ثانوي دورې د جغرافيې د مضمون له زده کوونکوڅخه هيله ده چې لاندې علمي، مهارتي او ذهني موخې ترلاسه کړي:

- زده کوونکي د هيواد او نړۍ د طبيعي جغرافيې په هکله معلومات ترلاسه کړي.
- زده کوونکي د طبيعي افتونو او پيښو په هکله معلومات پيداکړي.
- زده کوونکي د توريزم او په نړۍ کې د توريستيکي سيمو په هکله معلومات لاس ته راوړي.
- زده کوونکي د هيواد او نړۍ له سياسي جغرافيې څخه خبر شي.
- زده کوونکي د هيواد او نړۍ له بشري جغرافيې څخه خبر شي.
- زده کوونکي د ځمکې، سياراتو، شمسي نظام او کهکشانونو په هکله معلومات ترلاسه کړي.
- زده کوونکي وکولای شي چې د اقليم ډولونه يو له بله جلا کړي.
- زده کوونکي د کرنې، مالدارۍ، سوداگرۍ او صنايعو په هکله کاري وړتيا پيدا کړي.
- زده کوونکي وکولای شي چې نقشه ولولي او په عملي توگه له هغې څخه گټه واخلي.
- زده کوونکي وکولای شي چې د هيواد او نړۍ بيلابيل طبيعي، سياسي، اقتصادي او مواصلاتي حالت د نقشې پرمخ په نښه کړي.
- زده کوونکي وکولای شي چې د هيواد او نړۍ په بيلابيلو سيمو کې د نفوسو د را ټوليدو او ويش لاملونه په گوته او روښانه کړي.
- زده کوونکي وکولای شي چې کهکشانونه، د سيارو نظامونه او ستوري يوله بله جلا کړي.

## د جغرافيې د درسي پروگرام ليدلوري:

د جغرافيې په زده کړه کې ليدلورى د جغرافيايي ليد لاس ته راوړنه او له هغې څخه عملـــي گټـــه اخيـــستنه ده. د جغرافيايي ليد له زده کړې څخه مطلب د مکان پيژندنه (موقعيت، طبيعي او انساني ځانگړتياوې او د پديدو ويش) د انـــسان او چاپيريال تر منځ اړيکې (پر انسان باندې د طبيعت اغيزې او پر طبيعت باندې د انسان اغيزې) د ځايونو او مکانونو ترمنځ د خپل منځي اړيکو پيژندنه (اقتصادي، فرهنگي، سياسي او نورې اړيکې) او د جغرافيې څخه د بيلابيلو (ښـــاري، کرنيـــزو، نفوسو، اوسيدنې او محيطي کړنلارو د جوړولو په برخو) کې عملي گټه اخيستنه.

## د اووم، اتم او نهم ټولګيو د جغرافيايي تسلسل او پراخوالي جدول

| د لوست نوم | اووم ټولګي | اتم ټولګي | نهم ټولګي |
| --- | --- | --- | --- |
| جغرافيه | لومړی څپرکی – د جغرافيې مبادي<br>● جغرافيايي اصطلاحات او مفاهيم<br>● د جغرافيې د علم تعريف<br>● د جغرافيې د لوستلو ګټې<br>● د ځمکې د کرې ځانګړتياوې.<br>● د شمالي او سويلي قطبونو دايرې<br>● حاره سيمه، شمالي او سويلي معتد لې سيمې او قطبي سړې سيمې.<br>● وضعي او انتقالي حرکتونه | لومړی څپرکی: د اروپا جغرافيه<br>● موقعيت او څلور خواوې<br>● طبيعي جغرافيه<br>● سياسي جغرافيه<br>● بشري جغرافيه<br>● اقتصادي جغرافيه<br>● مواصلاتي جغرافيه | لومړی څپرکی: د افريقا لويه وچه<br>● موقعيت او څلور خواوې<br>● طبيعي جغرافيه<br>● سياسي جغرافيه<br>● بشري جغرافيه<br>● اقتصادي جغرافيه<br>● مواصلاتي جغرافيه |
| جغرافيه | دويم څپرکی– د افغانستان جغرافيه<br>● موقعيت<br>● طبيعي جغرافيه<br>● بشري جغرافيه | دويم څپرکی: د امريکا د لويې وچې جغرافيه<br>● موقعيت<br>● طبيعي جغرافيه<br>● سياسي جغرافيه<br>● بشري جغرافيه<br>● اقتصادي جغرافيه<br>● مواصلاتي جغرافيه | دويم څپرکی: د استراليا، اقيانوسيې او انتارکتيکا موقعيت<br>● طبيعي جغرافيه<br>● سياسي جغرافيه<br>● بشري جغرافيه<br>● اقتصادي جغرافيه<br>● مواصلاتي جغرافيه<br>● اقيانوسيه<br>● انتارکتيکا(سويلي قطب) |
| جغرافيه | دريم څپرکی– د آسيا جغرافيه<br>● موقعيت<br>● بشري جغرافيه<br>● طبيعي جغرافيه<br>● اقتصادي جغرافيه<br>● مواصلاتي جغرافيه<br>● سياسي جغرافيه | | |



# د جغرافيې په پوهنه کې د زده کړې ستراتیژیګانې

د جغرافيې په لوستونو کې د تعليمي نصاب د زده کړې ستراتيژۍ د نورو څانګو په څير ډول ډول ده؛ خو د جغرافيې مضمون ځانګړې ستراتيژي هم لري. چې د موضوعاتو له محتوا سره مناسب ده.

دلته اړينه ده چې هغو ستراتيژي ګانو ته ځير شو چې د جغرافيې د مضمون محتوا، د افغانستان له شرايطو، د زده کوونکو له علمي سويې او عمر(سن) سره سمون ولري. دا ستراتيژي ګانې پردې اصل ولاړې دي چې زده کړه د زده کوونکو پر شاو خوا څرخي او ښوونکی يوازې د زده کړې اسانوونکی وي.

ښه زده کړه ډول ډول ستراتيژي ګانوته اړتيالري، چې د جغرافيې له محتوا سره سمون ولري. مهمې ستراتيژي ګانې دادي:

**۱–د مسألی حل او پلټنه**

د مسألي د حل ستراتيژي داسې ميتود دی، چې لومړی اساسي پوښتنې طرح کېږي او زده کوونکي بايد ځوابونه ورکړې او د حل لارې پيدا کړي. زده کوونکي بايد دا کار د حقايقو او معلوماتو د پلټنې له لارې په لاندې پړاوونو کې بشپړ کړي:

د مسألې ټاکل، د نمونو خوښول، د فرضيو جوړول، د ذهني حل دلارو بيانول يا د مسألې د حل طرحه، د ويناوو را ټولول او د ويناوو د تحليل او نتيجه ګيرۍ د موضوع په هکله د نظرياتو ويل او دقت کول.

ښوونکی کولای شي له دې ستراتيژۍ څخه د ژوند د مسايلو (لکه اقتصادي، ټولنيزو او سيمه ييزو) په برخه کې استفاده وکړي. زده کوونکي په څو ډلو وويشي، چې د حل د ممکنو لارو په هکله خبرې وکړي. ښوونکی بايد له زده کوونکو سره مرسته وکړي او اړونده منابع د هغو په واک کې ورکړي. د ښوونې او روزنې چارې سمبالې کړي او هغوی وهڅوي چې له خپلو مهارتونو څخه د بحث او پلټنو په وسيله ګټه واخلي.

**۲– د متن تحليل**

له دې ستراتيژۍ څخه د تاريخ، مدني معلوماتو او جغرافيې په مضمون کې ګټه اخيستل کېږي. په دې ستراتيژۍ کې له هغو متنونو څخه چې غوره کېږي، استفاده کېږي. دا ستراتيژۍ د لاندې پړاوونو لرونکي ده:

- زده کوونکو ته د اصلي متن له ويشلو وروسته، ښوونکی هغه لولي.
- زده کوونکو ته وخت ورکوي چې متن ولولي او پر هغو پوښتنو باندي چې طرح کېږي فکر وکړي.
- ښوونکی او زده کوونکي په ډلييز ډول د ځوابونو په اړوند خبري کوي.
- ښوونکی د اصلي متن اونورو موادو تر منځ اړيکې پيدا کوي، چې د بيلابيلو مضمونونو ترمنځ اړيکي ټينګې کړي.

**۳– د مفاهيمو شبکې**

په دې طريقه کې زده کوونکو ته يو شمير مفاهيم ورکول کېږي چې هغوته يو له بل سره ارتباط ورکړي، له دې ميتود څخه د جغرافيې په مضمون کې ګټه اخيستل کېږي چې دی مطلب ته د مفاهمو ترکيب اويا سنتزهم ويل کېږي .لاندې مثال ته ځير شئ.



### ۴- د زده کړې فعالیت

په دې ډول زده کړه کې ښوونکې د زده کړې لپاره ښه شرایط برابروي چې زده کوونکي د زده کړې فعالیتونه په دقیق ډول سرته ورسوي. ښوونکی باید د زده کوونکو د فعالیت په وخت کې لاندې موضوعات په نظر کې ونیسي.

د زده کوونکو ترمنځ فردي توپیرونه، با له مناسبو موخو سره فعالیتونه، په فکري عالي مهارتونو باندې تمرکز کول.

**لاندې مثال ته ځیر شئ:**

- له کابل څخه د هرات ولایت په لور ځمکنی سفر پیل کړئ او د هغو مهمو ښارونو نومونه ولیکئ چې ورڅخه تیریږئ.

### ۵ د مستقیم تدریس ستراتیژي:

هغه وخت له دې طریقې څخه ګټه اخیستل کیږي چې ښوونکي غواړي یو مطلب د خبرو له لارې وړاندې کړي. په دې طریقه کې اساسي رول ښوونکی لوبوي.

دا طریقه د تاریخي موضوعاتو د تدریس لپاره( لکه لومړۍ نړیوال جګړه) مناسبه ده.

ښوونکی کولای شي، چې له دې طریقې څخه د مفهوم د تدریس او عمومیت ورکولو لپاره ګټه واخلي.

په دې شرط چې د قیاسي طریقې څخه ګټه واخلي او لاندې پړاونه مراعات کړي:

- د ... مفهوم لپاره تعریف وړاندې کړئ.
- له زده کوونکو سره د اقتصادي ځانګړتیاوو په هکله بحث وکړئ.
- د اقتصاد ( د کرنې، سوداګرۍ او...) د مفهوم مثالونه وړاندې کړئ.
- د مفهوم د مثالونو په هکله زده کوونکو ته دنده وسپارل شي او له هغوی څخه وغواړی، چې هغه ډلبندي کړي
- د مثالونو په ورکولو سره زده کوونکو ته مفهوم ورکړئ اوله هغوی څخه وغواړئ چې هغه ډلبندي کړي.

### ۶- د ډله ییز فعالیت ستراتیژي

په دې طریقه کې زده کوونکي له څلورو څخه تر شپږو تنو پورې په څو ډلو ویشل کیږي. ددې طریقې فعاله زده کړه د ښه غوږ نیولو، بحث او خبرو د مهارتونو له لارې هڅول کیږي.

په دې کړنلاره کې د هرې ډلې زده کوونکي ګډو موخو ته د رسیدلو لپاره له یو بل سره کار کوي. ښوونکی کولای شي له ځینو وسایلو څخه د زده کوونکو سره د مرستې لپاره ګټه واخلي، له ډله ایيزې کړنلارې څخه کولاي شو، د ساده ځیرنو په سرته رسولو، د نقشې په رسمولو، د یوې نمایشنامې په اجراء کولواو د ماډل په جوړولو کې ګټه واخلو.

### ۷- د رول لوبولو طریقه

دا طریقه د فعالې زده کړې له مهمو طریقو څخه شمیرل کیږي، په دې طریقه کې له زده کوونکو څخه غوښتل کیږي، چې هغه رولونه چې په واقعي ژوندانه کې وجود لري ولوبوي، ښوونکي باید هر زده کوونکي ته خپل رول چې باید ویې لوبوي ورپه ګوته کړي.

### ۸- د تمرین میتود

تمرین یو له هغو فنونو څخه دی چې له ډیرې پخوا څخه په زده کړه کې استعمال شوی دی.

نن ورځ چې د روزنې (تربیتي) موخې د ذهنیتي او مهارتي پوهې په چوکات کې تنظیم کیږي، د ښوونکو مسوولیتونه زده کوونکو ته د مناسبو تمرینونو په ورکړه کې هم زیاتیږي. تمرینونه ډیر ډولونه لري، لکه : د تکرار کولو تمرین، د نتیجې دترلاسه کولو تمرین، ځوځوابه، خانه خالي او معلوماتي پوښتنې، چې د فکر کولو، استدلال او د مفاهیمو په کارولو سره یو ځای وي اوعملي تمرینونه (له دې تمرینونو څخه د مهارتونو د لاس ته راوړلو لپاره دتاریخي او جغرافیایي نقشو په لوستولو، د جغرافیایي طول او عرض او دپیاوړو اونامتو اشخاصو د شجرې په پیدا کولو کې ګټه اخیستل کیدای شي)

## ۹- توضیحي طریقه

توضیحي طریقه زده کوونکو ته د مستقیمو اطلاعاتو انتقال، د چاپي مطالبو، د لوست تشریح کول او نورو رسنیو څخه ګټه اخیستنه ده.

په دې طریقه کې ښوونکی مفاهیم او درسي موضوعات زده کوونکو ته وړاندې کوي. د توضیحي طریقې له ښه والي څخه یو هم دا ده چې کولای شو د حقایقو پوره مجموعه، اصول او مفاهیم په منظمه توګه زده کوونکو ته وړاندې کړو. د دې طریقې نیمګړتیا داده، چې زده کوونکي تیار مطلبونه ترلاسه کوي او د حقایقو په کشفولو کې فعال نه وي. دا طریقه که له نورو طریقو سره یو ځای استعمال شي، ګټوره به وي، له توضیحي طریقې څخه د زیاتو علمي مفاهیمو په زده کړه کې کولای شو ګټه واخلو.

## ۱۰- د ډله ییزې مباحثې طریقه

د مباحثې میتود یو له ډېرو پخوانیو میتودونو څخه دی، چې د ښوونې او روزنې د تاریخ په اوږدوکې ورڅخه ګټه اخیستل شوي، د ډله ییز بحث په پیل کې ښوونکی زده کوونکي په ډلو ویشي، او هرې ډلې ته د بحث ځانګړې موضوع ټاکي، او له زده کوونکو څخه غواړي، چې د هغې په هکله بحث وکړي او د بحث په پای کې د ډلې له غړو څخه یو تن د بحث پایلې نورو زده کوونکو ته بیانوي.

ډله ییز بحث داسې طریقه ده، چې غړو ته یې فرصت ورکوي چې خپل نظریات، عقیدې او تجربې له نورو سره شریکې کړي که چیرې ښوونکی د ډله ییز بحث څخه څارنه ونه کړي ممکنه ده، ډله ییز بحث وخت په بې ګټې خبرو تیرشي. له دې طریقې څخه کولای شو د ټولنیزو موضوعاتو په زده کړه، د تاریخ د قهرمانانو د کړنو په هکله قضاوت او د انساني (بشري) جغرافیې په اړوند مسایلو کې ګټه واخلو.

## ۱۱-د پروژې طریقه

د پروژې متود څېړنې، د اطلاعاتو راټولولو او د لارې د حل پیداکولو، مطالعې او د عملي کارونو سرته رسولو ته اړتیا لري. دا طریقه همیشه د ښوونځي څخه بهر عملي کېږي، په دې طریقه کې ښوونکی موضوعات د زده کوونکو د خوښې سره سم غوره کوي او له هغو څخه غواړي، چې د موضوعاتو په هکله اطلاعات راټول کړي او یا یو فعالیت سرته ورسوي. د مثال په توګه د ډبرو را ټولول، د عکاسۍ د دوربینونو په مرسته د منظرو دتصویر برابرول، د یوې تاریخي ماڼۍ مطالعه، د یوې کوچنۍ سیمې د جغرافیایي نقشې برابرول او د ټولنیزې ځانګړې موضوع په هکله مطالعه کول دي.

## ۱۲- علمي سیر

د علمي سیر طریقه له ښوونځي څخه بهر یو تجربوي فعالیت دی او د ټولګي څخه بهر سرته رسیږي. د مثال په توګه په ښار کې ګرځیدل، د یوې کارخانې، کتابتون او تاریخي اثارو څخه کتنه اویادیوې ادارې، کروندې، یوه کان، یوه موزیم، یوې جغرافیایي منظرې او داسې نورو برخو څخه کتنه کول دي.

اړینه نه د ه، چې علمي سیر حتماً د لېرې برخو څخه کتنه وي، بلکې د زده کوونکو له چاپیریال څخه کتنه چې د پوهنیزو تجاربو د حاصلولو امکانات برابروي هم علمي سیرګڼل کېږي.

## ۱۳- د پوښتنو او ځوابو طریقه

د پوښتنو او ځوابونو طریقه هغه فن دی چې کولای شو د ټولو درسونو په تدریس کې ورڅخه ګټه واخلو. په ځانګړې ډول هغه وخت چې ښوونکی وغواړي. دزده کوونکو پام د یوه نوي مفهوم په هکله فکر کولو ته راواړوي، له دې طریقې څخه ګټه اخلي، دافن ممکن په یوه لوست باندې د تکرار لپاره چې پخوا تدریس شوی وي او یا د زده کوونکو د پوهې د ارزونې لپاره وکارول شي.

ښوونکی کولای شي څو ډوله پوښتنې طرحه کړي، چې کولای شو هغه په لاندې ډول رالنډې کړو:

۱ – لنډې پوښتنې

مثال: د هلمند سیندله کوم غره څخه سر چینه اخلي؟

۲: مقایسوي پوښتنې

مثال: مدیترانه يي آب و هوا له صحرايي آب و هوا څخه څه توپیر لري؟

۳: علت او معلول

مثال: په سلو وروستنیو کلنو کې د اروپا د لویې وچې د نفوسو د لړې ودې علت څه شی دي؟

۴: توضیحي پوښتنې

مثال: د افریقا دلویې وچې آب و هوا توضیح کړئ؟

۵: د لنډیز لپاره پوښتنې

مثال: څلورم لوست ولولئ او لنډیز یې ووایاست؟

٦: د مثال لپاره پوښتنه

مثال: د رسوبي، متحوله او اورغورځوونکو ډبرو څخه یو مثال ووایاست؟

۷– د تجزیې او تحلیل لپاره پوښتنه

مثال: دیوې سیمې پر اقلیم کوم عوامل اغیزه لري؟

۸– د طبقه بندۍ لپاره پوښتنې

مثال: د ننگرهار ولایت آب و هوا دله کوم ډول آب و هوا څخه ده؟

۹– د نتیجه گیرۍ پوښتنې

که چیرې د کابل سیند وچ شي، په کرنه باندې به څه اغیزې وکړي؟

## د زده کوونکو د پوهې د ارزونې ستراتیژي

ارزونه د زده کړې موخوته د رسیدلو د اندازې د معلومولو وسیله ده. ارزونه ښوونکي ته د زده کړې د طریقو او فعالیتونو له بریالیتوب څخه یو روښانه تصویر ورپه برخه کوي.د جغرافیې د مضمون د ارزونې لپاره، نورو مضمونونو ته له ورتـه طریقـو څخه کار اخلي، خو د موضوع د توپیر په خاطر، د هغو له ځینو زیاتو څخه کار اخلي.

څرنگه چې ارزونه د روزنې له مهمو کړنلارو څخه گڼل کېږي، د یوه درس د زده کړې لپاره آړینه ده، چې د جمود(تلقین او د معلوماتو د یادونې) څخه بهر شي او په ژوندۍ زده کړه( په بحث، تحلیل، تفسیر او د مسایلو په حل) واوړي.

د ارزونې ځینې مهمې ستراتیژي گانې په لاندې ډول دي:

### د قلم او کاغذ (لیکلو) له طریقې څخه استفاده

په دې طریقه کې د قلم او کاغذ څخه کار اخیستل کېږي او له مهمو ستراتیژیگانو څخه ده، چې د زده کوونکو ځواک پـه ځانگړو کارونو کې اندازه کوي. په دې طریقه کې چې کومې پوښتنې هغو ته ورکول کېږي په لیکلې توگه ورتـه ځـواب ورکوي. له دې طریقې څخه معمولاً په څلورنیم میاشتنیو او کلنیو ازموینو کې گټه اخیستل کېږي ترڅـو د زده کوونکـو د زده کړې اندازه په ټاکلي دوره کې وارزول شي. دیادوني وړ ده چې دا ډول ازموینه یوازې د پیژندنې او پـوهې پـه برخـو پورې تړلې پاتې کېږي.

**د کتنې (مشاهده کولو) طریقه**

په دې طریقه کې ښوونکی یا کتونکی خپل ټول حواس زده کوونکوته ور اړوي او هغوی په یوه ټاکلي ځای کې تر څارنې لاندې نیسي. د دې څارنې موخه دا ده، چې د زده کوونکو په هکله معلومات تر لاسه کړل شي، او د هغوي د مهارتونو، سلوک او اخلاقو د ارزونې لپاره ترې ګټه واخلي، د کتنې په وخت کې له ډول ډول وسایلو څخه هم ګټه اخیستل کېږي، د مثال په توګه ارزونه کله عددي او کله غیر عددي وي، د هغې څخه وروسته چې ښوونکي دا اطلاعات راټول کړي باید هغه د کمیت له مخې تحلیل کړي، چې د زده کوونکو کمزورې او قوي نقطې پیدا شې، د مشاهدې په متودکې باید له څو ډوله چک لستونو څخه ګټه واخیستل شي.

چک لستونه مختلف ډولونه لري. د مثال په توګه د مسایلو په حل کې د زده کوونکو د مهارتونو د اندازه کولو چک لست، د زده کوونکو د عملي کارونو د اندازه کولو چک لست، د اړوندو مهارتونو د اندازه کولو چک لست.

ښوونکی کولای شي په خپله د زده کوونکو د سلوک او عمل د کتنې د چک لست په برابرولو اقدام وکړي.

د زده کوونکو د مهارتونو د اندازه کولو دچک لست نمونې ته چې د مسایلو د حل لپاره په کارېږي، پاملرنه وکړئ:

**د کړنو پر بنسټ د ارزونې چک لست**

| ګڼه | معیار | ضعیف(۱) | منځنی(۲) | ښه(۳) | عالي(۴) |
|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | طریقه | | | | |
| ۲ | د مسئالې ځانګړې کول او د هغې تحلیل | | | | |
| ۳ | وړاندې کول | | | | |
| ۴ | د مطلبونو راغونډول او د هغو تحلیل | | | | |
| ۵ | تصمیم نیول | | | | |

په دې طریقه کې باید زده کوونکي هغه څه چې د خپل واقعي ژوند په اوږدو کې یې زده کړي دي توضیح کوي، یادې فعالیت تر سره کړي چې مهارت یې څرګند شي.

په دې طریقه کې هغه معیارونو ته لکه د زده کوونکي توضیحات، د نقش یا رول لوبول، په ډله ییزو کارونو کې مرسته کول، د ځانګړو کارونو سرته رسول او نورو زیاتو کارونو ته پام کېږي.

## د جغرافيې په لوستونو کې د زده کوونکو د کړنو لپاره د ارزونې چک لست

| شمير | معيارونه | منځني | ښه | عالي |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | له دوستانو سره په سمه او فصيحه ژبه اړيکې ټينګوي | | | |
| ۲ | د جغرافيې د مضمون له اصطلاحاتو، مفاهيمو او محتوا څخه ګټه اخلي | | | |
| ۳ | د ټولو زده کوونکو په لور ګوري | | | |
| ۴ | د خو شاله او پياوړې شخصيت لرونکې دي. | | | |
| ۵ | د زده کوونکو پوښتنوته په زړورتيا او ډاډڅواب ورکوي. | | | |
| ٦ | مفاهيم او اصطلاحات تعريفوي. | | | |
| ۷ | د محتوا مهم عناصر ټاکي. | | | |
| ۸ | د درس اړوند جغرافيايي نقشې څخه ګټه اخلي | | | |
| ۹ | د زده کړې له موادو څخه په ښه توګه ګټه اخلي | | | |
| ۱۰ | خپل مطالب په ټاکلي وخت کې سرته رسوي. | | | |

۳- د اړيکو د مهارتونو د ارزونې چک لست

دا طريقه له نورو سره د اړيکو ټينګولو د مهارتونو، د زده کړې د اندازه کولو لپاره استعماليږي، د جغرافيې د مضمون نصاب د ارتباطي مهارتونو په پر مختيا ولاړدی. په دې ستراتيژۍ کې معلومات د زده کوونکو د ارتباطي فعاليتونو، د تفکر کولــو او د مسايلو د حل کولو له لارې راغونديږي.

لاندې مثال ته پاملرنه وکړئ:

## د اړيکو د مهارتونو د ارزونې د چک لست نمونه

| ګڼه | د اړيکو مهارتونه | | |
|---|---|---|---|
| ۱ | نوروته نوښتګر فکرونه طرح کوي | | |
| ۲ | هغه وخت چې مطلب ورته څرګند شي د نورو خلکو رايه مني او د خپل نظر څخه تيريږي. | | |
| ۳ | د نورو نظريوته درناوی کوي. | | |
| ۴ | په هغو کارونو کې چې ورته ورسپارل شوي دي د مسووليت احساس کوي | | |
| ۵ | له نورو سره مرسته کوي. | | |

**پاملرنه:**

د زده کوونکو د ټولګي د نومرو يوه برخه د ښوونکي د کتنې له لارې، په ټولګي کې د زده کوونکو د فعاليتونو له مخې ټاکلي کېږي. او پاتې نورې يې د پوهنې وزارت د ارزونې اداري په پريکړې پورې اړه لري.

د جغرافيې د علم د درسي کړن لارې د عملي کولو وسايل

۱ – د زده کړې مرستندويه اړين وسايل

توره دړه، تباشير، مارکر، د ښوونکو د لارښود کتاب، ورځپاڼې، مجلې، دزده کړې چارتونــه، فلــش کــارت، ډول ډول جغرافيايي نقشې، اړوند کتابونه، د شته والي په صورت کې کمپيوتر او انترنيت، ډول ډول سلايدونه، انځورونه، جغرافيـــايي فلمونه، جغرافيايي اطلس، د ځمکې کره او گرافونه.

۲ – د جغرافيې له ښوونکي څخه هيلې .

**الف: عمومي صلاحيتونه**

۱. د جغرافيې په علم کې د ليسانس يا لږ تر لږه د مافوق بکلوريا زده کړې، په خپله اړونده څانگه کې له وروستيو اطلاعاتو سره آشنايي، د زده کوونکو له عمر او ذهنيتي ځانگړتياوو سره آشنايي، د زده کړې له ميتودونو، او د زده کوونکو د پوهې د ارزونو له طريقو سره آشنايي، د ښوونې د ندې سره مينه او علاقه او ښه اخلاق.

**ب: ځانگړي صلاحيتونه:**

- د جغرافيايي لوستونو د کړن لارې او نورو مختلفو درسونو د تدريس له ميتودونو سره آشنايي
- د مختلفو درسونو لپاره د ښوونې د پلان جوړونې قدرت ولري.
- د درسي ټولگيو د اداره کولو قدرت ولري.
- د زده کړې له مرستندويه وسايلو څخه د گټې اخيستنې قدرت ولري.

**۳. د ښوونځي له چارواکو څخه غوښتنه**

–د زده کړې لپاره د شرايطو ( د کتابونو، د ښوونکي د درسي لارښود او د زده کړې وسايل) برابرول

– د زده کوونکو له والدينو سره د منظمو اړيکو ټينگول.

– د تعليمي کال د کړنلارې په عملي کولو کې د پوهنې وزارت مصوباتو ته پاملرنه.

–په ټولگي کې د ښوونکو پر کړنو نظارت او د ښوونکو لارښوونه.

– په ښوونځيو کې د کتابتونونو جوړول.

– د زده کوونکو د ميندو او پلرونو په مرسته د ښوونکو د اړتيا وړکتابونو برابرول.

**۴– د زده کوونکو له کورنيو څخه غوښتنه**

- د کوچنيانو د زده کړې د حالت په هکله د خپلو کوچنيانو له ښوونکو سره د اړيکو ټينگول
- د کوچنيانو د درس له پرمختگ څخه باخبري.

# دو یم څپرکی

## د جغرافيې لوست د تدريس لارښود

د دې لارښود په لومړۍ څپرکي کې تاسې درانه ښوونکي د سريزې او درسي پلانونو په کلياتو، د تدريس په ميتودونـــو او د ارزونې له طريقو سره آشنا شوئ. په دې څپرکی کې به د درسي کلني پلان او د هر درس له درسي لارو چارو سره آشنا شئ

کلني درسي پلان:

کلني درسي پلان راښيي چې د يو درسي کتاب محتوا د کال په اوږ دو کې څرنگه وويشلی شي. زموږ پـــه هيـــواد کـــې د تعليمي کال پيل د سړو سيمو او تودوسيمو په ولاياتو کې توپيرلري. په تودو سيمو کې تعليمي کال د دوړې د مياشتې لـــه پنځه لسمې څخه پيل کېږي. د مرغومي( جدي) د مياشتي دوه وروستنۍ اونۍ د څلورنيم مياشتنۍ ازموينې لپـــاره ځـــانگړې شوي دي او بيا لس ورځې رخصتي وي د پسرلي په وروستنۍ مياشت غبرگولي(جوزا) کې په دوه لومړنيو او نيو کې کلنـــۍ ازموينه او بيا کلنۍ وروستنۍ رخصتي وي.

په سړو سيمو کې تعليمي کال د کب د مياشتې له ۱۵ نيټې څخه پيل کېږي. څلورنيم مياشتنۍ ازموينه دچنگاښ(ســـرطان) د مياشتې په دوه وروستنيو او نيوکې وي او د زمري(اسد) لس لومړۍ ورځې رخصتي وي، کلنۍ ازموينه د لينـــدۍ (قـــوس) د مياشتي په دوه لومړيو اونيو کې وي او بيا وروستنۍ کلنۍ رخصتي وي.

ټول تحصيلي کال ۳۰ اونۍ کېږي. د کلني پلان د جوړونې لپاره دلوست د کتاب مخونه د ۳۰ پر عدد ويشو اوتـــر لاســـه شوی عدد راښيي چې تاسې درانه ښوونکي بايد په اوونۍ کې دلوست د کتاب کوم شمير مخونو درس ورکړئ.

د هرلوست په ورځينې پلان کې د زده کړې موخې، د تدريسي ميتودونه، د لوست مرستندويه توکي، د زده کوونکو د پوهې د ارزونې طريقې، دتدريسي فعاليتونو( پيلوونکي فعاليتونه لکه روغبړکول، د حاضري اخيستل، د تيـــر لوســـت ارزونـــه، د انگيزې (هڅونې) رامنځ ته کول، د درس وړاندې کول او د زده کوونکو د پوهې ارزونه) د متن د ننه پوښتنو او وروســـتنيو پوښتنوته ځوابونه او د ښوونکو لپاره اضافي معلومات دي.

# د سږو سیمو ځانګړی درسي کلنی پلان

| فصل | میاشتې | لومړۍ اونۍ | دویمه اونۍ | دریمه اونۍ | څلورمه اونۍ |
|---|---|---|---|---|---|
| ژمی | کب | رخصتي | رخصتي | | |
| پسرلی | وری | | | | |
| | غویی | | | | |
| | غبرګولی | | | | |
| اوړی | چنګاښ | | | آزموینه | آزموینه |
| | زمری | | | | |
| | وړی | | | | |
| منی | تله | | | | |
| | لړم | | | | |
| | لیندۍ | آزموینه | آزموینه | رخصتي | رخصتي |

# د تودو سيمو ځانګړی درسي کلنی پلان

| فصل | مياشتې | لومړۍ اونۍ | دويمه اونۍ | دريمه اونۍ | څلورمه اونۍ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوړی | وړی | رخصتی | رخصتي | | |
| منی | تله | | | | |
| | لړم | | | | |
| | ليندۍ | | | | |
| ژمی | مرغومي | | | آزموينه | آزموينه |
| | سلواغه | ۱۰ ورځې رخصتي | | | |
| | کب | | | | |
| پسرلی | وری | | | | |
| | غويی | | | | |
| | غبرگولی | آزموينه | آزموينه | رخصتي | رخصتي |

## د لومړي لوست د تدريس د لارښود پلان

**د تدريس وخت: يو درسي ساعت**

**مضمون: جغرافيه**

| سرليکونه | د مطلبونو تشريح | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | د اروپا لويه وچه وېپژنئ د جغرافيايي موقعيت او څلورخواوې) | |
| ۲- د زده کړې (پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي) موخې: | زده کوونکي بايد د درس په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي.<br>هر اړخيزه موخه:<br>د اروپا د لويې وچې له جغرافيايي موقعيت سره اشنا کيدل<br>جزيې موخې :<br>- د اروپا د لويې وچې جغرافيايي موقعيت د نقشې پر مخ وښيې.<br>- د اروپا د ټاپو وزمو نومونه بيان کړي.<br>- د اروپا د لويې وچې پراخوالی ووايې.<br>د اروپا د شاوخوا سمندرگيو نومونه واخلي<br>د اروپا د لويې وچې ټاپووزمې په نقشه کې وښيي. | |
| ۳- د زده کـــړې د لارو چارو (ميتودونو) وړانديزونه | تشريح کول، لوستل، پوښتنې او ځوابونه او ډله ييز فعاليت. | |
| ۴- د زده کړې مرستندوی توکي | د اروپا طبيعي نقشه، د لوست کتاب، توره دړه، تباشير او سياسي نقشه. | |
| ۵- ارزونه | شفاهي، ليکلی او عملی کار | |
| ۶- په ټولگي کـــې د درس ورکولو فعاليتونه | پيلوونکي فعاليتونه: په مروجه طريقه ټولگي ته ننوتل سلام او روغبړ کول، د حاضرۍ اخيستل، او د ټولگي تنظيمول .<br>هڅوونکي فعاليتونه: د توري دړې پر مخ د سرليک ليکل.<br>- د ټولگي مخ ته د اروپا د طبيعي نقشې ځړول،<br>هڅوونکې پوښتنه:د اروپا له لويې وچې څخه کوم سمندرونه او ســـمندرگي را چاپير دي؟ | وخت<br>۵ دقيقې<br>۵ دقيقې |

| د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | ۷- د ښوونکي درسي فعالیتونه( د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) |
|---|---|
| - پوښتنې ته ځواب ورکول.<br>- نوي لوست په چوپه خوله لولي او د ستوتزمنو کلمو پوښتنه کوي.<br>- زده کوونکي په ډلو کې تنظیم کېږي او د ښوونکي د لارښوونې له مخې د نقشې پرمخ کارکوي.<br>(د ایبري، سکندیناویا او د بالکان ټاپووزمې د نقشې پرمخ ښيې)<br>زده کوونکې د خپل بحث پایلې ټولګیوالو ته وايې<br><br>- د درس د اساسي ټکو په هکله له ښوونکي څخه د پوښتنو کول.<br><br><br><br><br><br><br>د پوښتنو ځوابونه وايې. | د لوست د سرلیک لیکل او د هڅوونکې پوښتنې طرحه کول.<br>- په چوپه خوله د نوي لوست د لوستلو او ستونزمنو کلمو د لیکلـــو لارښوونه کول.<br>- د زده کوونکو پوښتنوته ځواب ورکول.<br>- د نوي درس توضیح کول.<br>- د زده کوونکو هڅول د پوښتنو د ځوابونو لپاره.<br>- د ډله ییز فعالیت لپاره د زده کوونکو په ډلو ویشل او د هغو لپاره د اروپا د نقشې پرمخ د فعالیت ځانګړتیاوې.<br>• ښوونکی د ډله ییز فعالیت څارنه کوي او د ستونزو په حل کـــې مرسته کوي.<br>• ښوونکی دې د ډله ییز فعالیت پایلې جمع بندي کړي.<br>• ښوونکی دې د زده کوونکو د پوهې ارزونه وکړي.<br>• ښوونکی دې د درس لنډیزو وايي او له ټولګي څخه د بهر فعالیت لارښوونه دې وکړي. |

**د درس د انګیزې او متن د پوښتنو ځوابونه:**

۱- اروپا له دریو خواو څخه د مدیترانې سمندرګي، تورسمندرګي، د مانش سمندرګي، د اطلس سمندر او شمالي کنګل سمندر پورې نـــښتې ده.

۲- اروپا د آسیا د لویې وچې ادامه ده، چې له درې خواوو په اوبو او له یوې خوا د وچې یعنې د اورال غرونو او د اورال دسیند پورې نښتې ده.

۳- د سکندیناویا، بالکان او ایبري ټاپووزمې دي.

د لوست د وروستیو پوښتنو ځوابونه:

۱- یورشیا یوه لویه وچه ده چې له آسیا او اورپاڅخه عبارت ده.

۲- معتدله منطقه ده.

۳- داورال غرونه او د اورال سیند د آسیا او اروپا ترمنځ طبیعي سرحد ټاکل شوی دی.

## ۹- د ښوونکی لپاره اضافی معلومات

اروپا د یوریشیا د لویې وچې یوه برخه ده او په حقیقت کې هم ددې لویې وچې په لویدیځ کې د پراخه ټاپووزمې په بڼه موقعیت لري.هغه سمندرگي او سمندرونه چې اروپا یې د یوې ټاپووزمې په بڼه منځته راوړې ده، په شمال کې شمالي کنګل سمندر او د بالتیک سمندرگی، په لویدیځ کې د اتلس سمندر او په سویل کې د مدیترانې له سمندرگي څخه عبارت دي.

روسیه او ترکیه هغه هیوادونه دي چې یوه برخه یې په آسیا او بله برخه یې په اروپا کې ده.

د اورال غرونه، د اورال سیند، د مازندران سمندرگی (د کسپین سمندرگی)، د قفقاز غرونه، تورسمندرگی، باسفورس آبنا، دمرمري سمندرگی، د دردانیل آبنا، دآسیا او اروپا ترمنځ قراردادی پولې جوړوي .

د اروپا د لویې وچې غاړې ډیرې وتلې او ننوتلې برخې او ژورسمندرگي لري. او د پراخوالي یو پر دري برخه یې ټاپووزمو او ټاپوگانو نیولې ده.

اروپا د نړۍ یوازنۍ لویه وچه ده چې ټوله په معتدله اقلیمي سیمه کې واقع شوې ده، په دې لویه وچه کې ډیرې وچې میرې، سیلاب ډوله بارانونه او پراخه کنګلي سیمې نه لیدل کېږي .د اروپا له ځینو شمالي برخو څخه پرته نوره ټوله اروپا دکرنې لپاره برابره ده، د اروپا لوی ټاپوگان له انګلیستان، ایرلینډ، ایسلنډ، سیسل، ساردینا، کورسیکا او کریت څخه عبارت دي او لویې ټاپووزمې له شمال څخه جنوب ته عبارت دې : له کولا، اسکندیناویا، جیټلانډ، ایبری، ایتالیا او بالکان څخه او آبناگانې یې عبارت دي له: جبل الطارق( د اروپا او افریقا ترمنځ) باسفورس او دردانیل چې د نړۍ مهمې ستراتیژیکې او سواداګریزه آبناگانې شمیرل کېږي د اروپا او آسیا د لویو وچو ترمنځ موقعیت لري

## د دوهم لوست د تدریس د لارښود پلان

**د تدریس وخت: دوه درسي ساعتونه**

| سرلیکونه | د مطلبونو تشریح | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | د اروپا د لویې وچې طبیعي جغرافیه( غرونه) | |
| ۲- د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي)موخې. | زده کوونکي باید د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسیږي.<br>هر اړخیزه موخه:<br>د اروپا د لویې وچې له طبیعي ځانګړتیاوو سره اشنا کیدل<br>جزیې موخې:<br>د اروپا د لویې وچې د ځوانو او زړوغرونو پیژندل .<br>د اروپا د لویې وچې د ځوانو او زړو غرونو پرتله کول.<br>د ځوانو او زړو غرونو ځانګړتیاوې له انځورنو څخه په ګټې اخیستنې بیان کړي. | |
| ۳- د تــــــــدریس لارو چاور(میتودونو)وړاندیزونه. | تشریح کول، لوستل، پوښتنې او ځوابونه، توضیح کول او ډله ییز بحث | |
| ۴- د درس ورکولــــــو مرستندیه توکي. | د اروپا طبیعي نقشه، د لوست کتاب، د ښوونکو لارښود کتاب، د غرونو انځورنه. | |
| ۵- ارزونه | شفاهي، لیکلي او عملي کار | |
| ۶- په ټولګي کې د درس ورکولو فعالیتونه. | پیلوونکي فعالیتونه: په مروجه طریقه ټولګي ته ننوتل، سلام او روغبړ کــول، د ټولګي تنظیمول، د تیر لوست ارزونه او د زده کوونکو پواسطه له ټولګي څخه د بهر فعالیت وړاندې کول.<br>هڅوونکي فعالیتونه: په توره دړه د سر لیک لیکنه، د ټولګي مخ ته د اروپــا د طبیعي نقشې ځړول.<br>هڅوونکي پوښتنې: ایا فکر کوئ چې غرونه هم د انسانانو په شان زړیږي ؟ ولې د اروپا په لویه وچه کې بیابانونه نشته ؟ | وخت<br>۵ دقیقې<br>۵ دقیقې |

| وخت | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | ۷- د ښوونکي درسي فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) |
|---|---|---|
| ۳۵ دقیقې | **د پوښتنې ځواب ورکول.**<br>زده کوونکي په چوپه خوله لوست لولي او ستونزمن ټکي په نښه کوي.<br>د ستونزمنو ټکو پوښتنې.<br>زده کوونکي د نوي لوست تشریح ته غوږنیسی.<br>او د لوست د اساسي ټکو پوښتنې کوي.<br>ځوابونه وايي.<br><br>زده کوونکي په ډلو کې تنظمیږي، په ډلو کې د درس په غوره ټکو بحث کوي او د بحث پایلې ټولګیو الو ته وايي.<br><br>پوښتنو ته ځوابونه وایې. | - هڅوونکې او فکر کوونکې پوښتنې طرحه کول<br>- په تورې دړې د سرلیک لیکل.<br>- په چوپه خوله د نوي لوست لوستل او د ستونزمنو کلمو په نښه کول.<br>- پوښتنو ته ځوابونه ورکوي.<br>- نوي لوست تشریح کوي.<br>- په توره دړه د ځوانو او زړو غرونو انځور رسموي او د هغو ترمنځ د توپیرونو په هکله پوښتنې کوي.<br>- زده کوونکي په ډلو ویشي او د ډله ییز فعالیت پایلې خپلو معلوماتو سره یو ځای راغونډوي او لوست خلاصه کوي.<br>- د پوهیې د ارزونې لپاره د درس له ورستنیو پوښتنو څخه ګټه اخلي.<br>- له ټولګي څخه د بهر فعالیت لارښوونه کوي. |

## ۸- د هڅوونکو پوښتنو ځوابونه:

د اروپا لویه وچه د جغرافیوي جوړښتونو له پلوه نورو وچو په پرتله د کتنې وړ ځانګړتیاوي لري. د اروپا غرونه په دوو برخو ویشل کېږي ځوان او زاړه غرونه.

**د لوست د ورستنیو پوښتنو ځوابونه**

۱- د الپ او پرینی غرونه د اروپا د لویې وچې په جنوب کې پراته دي، د پرینې غرونه د فرانسې او اسپانیې د هیوادونو ترمنځ طبیعي پوله جوړوي، د الپ د غرونو لړۍ په پخوانۍ یوګوسلاویا، ایتالیا، سویس، اواتریش کې غزیدلي ده.

۲- د الپ او پریني د غرونو په منځ کې ډیرځروبې لیدل کېږي.

۳- اروپا په مرطوبه معتدله منطقه کې پرته ده اوبوته (سمندرونو او سمندرګیو)ته زیاتې لارې لري، بې اوبو اوبې وښو صحراګانې پکې نه لیدل کېږي.

**۹– د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:** د اروپا زیاته برخه لږ لوړوالی لري او د ټیټو منطقو یوه برخه شمیرل کېږي او فقط د غونډیو په بڼه نـــا اواري په کې لیدل کېږي چې د هغو زیاترولوړوالی یې له ۲۵۰ مترو څخه لږ دی. د اروپا ټیټې سیمې د روسیې لویې دشتې دي، چې د اروپا پــه شمال کې تر فنلند هیواد پورې غزیدلې دي او په لویدیځ کې د اروپا د شمال تر ټیټیو سیمو اوپه سویل کې د رومانیې، بلغاریې او هنگـــري تـــر دشتو پورې رسیږي.

د اروپا شمالي غرونه د دې له امله چې د ځمکې پیژندنې په لومړي دوران کې منځته راغلي دي، پخواني او زاړه دي او زیاتره د سولید لـــو تـــر اغیزو لاندې دي او د سویلي غرونو په پرتله لږ لوړوالی لري، چې هغه د ځمکې پیژندنې په دریم دوران کې مینځته راغلي او ځوان غرونه دي پـــه همدې سبب شمالي اروپا ته زړه اروپا او جنوبي اروپا ځوانه اورپا وایي.

د ځوانو غرونو د ځانگړتیاوو څخه زلزلې، اورغورځونې، ژورې درې، تیرې څوکې او ډیرې مخ په ځوړې لمنې دي، په داسې حال کې چـــې پـــه زړو غرونو کې زلزلې او اور غورځونې نه وي لوړوالی یې لږ او لمنې یې ډیر لږ ځوړې لري.

د اروپا په منځنۍ او لویدیځو سیمو کې هم لوړ غرونه لیدل کېږي . د اورال غرونه چې د آسیا او اروپا ترمنځ قراردادي پولې جوړوي، له شـــمال څخه سویل لورته پراته دي، لوړوالی یې لږ او لوړه څوکه یې (نارودنایا) په نوم ۱۸۹۴ متره لوړوالی لري، چې دا لوړوالي یې څه ناڅه د فرانـــسې د ماسیف سانترال د غرونو سره برابر دې، ددې منطقې لوړوالی د ۱۵۰ مترو او ۶۰۰۰ مترو ترمنځ دی.

د شمالی اروپا ټول غرونه د سولیدلو تر اغیزې لاندې دي، غرونه یې گنبځی، اواره بڼه او لږ لوړوالی لري.او تیرې څوکې په کې ډیرې لږې لیدل کېږي.

## د دریم لوست د تدریس د لارښود پلان

**د تدریس وخت: دوه درسي ساعت**

| سر لیکونه | د مطلبونو تشریح | وخت |
|---|---|---|
| **۱- د درس موضوع** | **د اروپا د لویې وچې سیندونه** | |
| **۲- د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې.** | **له** زده کوونکو څخه هیله کېږي چې د تدریس په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>هر اړخیزه موخه:<br>د اروپا د لویې وچې له مهمو سیندونو سره اشناکیدل.<br>جزیې موخې:<br>- د اروپا د مهمو سیندونو له نومونو سره اشنا شي.<br>- د اروپا د سیندونو د څرنګوالي له علت سره اشنا کیدل.<br>- داروپا دسیندونو په قتصادي ارزښت پوه شي.<br>د څو مهمو سیندونو نومونه واخلي.<br>- دنقشې پرمخ د اروپا مهم سیندونه وښايي. | |
| **۳- د تدریس د لارو چارو(میتودونو)وړاندیزونه.** | تشریحي، لوستل، توضیحي، پوښتنې او ځوابونه او ډلې ییز بحث | |
| **۴- د درس ورکولو مرستندوی توکي.** | د اروپا طبیعي نقشه، د اروپا د ځینو سیندونو انځورونه، د لوست کتاب د ښوونکي د لارښودکتاب، توره دړه، تباشیر او د لوست د کتاب انځورونه | |
| **۵- ارزونه** | شفاهي، لیکلي او عملي کار، له ټولګي څخه بهر فعالیت | |
| **۶- په ټولګي کې د درس ورکولو فعالیتونه.** | **پیلوونکي فعالیتونه:** ټولګي ته په مروجه طریقه ننوتل (سلام او روغبړ کول) د ټولګي تنظیمول، حاضري اخیستل، د تیر لوست ارزونه او د زده کوونکو پواسطه د ټولګي څخه د بهر فعالیت وړاندې کول.<br>**هڅوونکي فعالیتونه:**<br>په توره دړه د لوست د سر لیک لیکل، مخکې د درس له پیل څخه د اروپا طبیعي نقشه او د طبیعي سیمو انځورونه په د یوالی ځړول او وروسته له زده کوونکو څخه پوښتنه کول، چې د نقشې په مرسته د څو سیندونو نومونه واخلي او د سیندونو د اقتصادي ګټو او اهمیت په هکله له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړي. | **۵ دقیقې**<br>**۵ دقیقې** |

| ۷- د ښوونکو درسي فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | وخت |
| --- | --- | --- |
| - په توره دړه د سر لیک لیکل او فکـــر کـــوونکې پوښتنې طرحه کول.<br>- په چوپه خوله د نوي لوست لوستل او د ستونزمنو ټکو په نښه کول.<br>- د ستونزمنو اصطلاحاتو، کلماتو او لغتونو تشریح کول.<br>- په توره دړه د نوي لوست د اساســـي مفـــاهیمو لیکل.<br>- د نوي لوست تشریح کول.<br>- زده کوونکي په ډلو ویشل او د فعالیت موضـــوع ورته ټاکل<br>- د ډلو څارنه او د هغو لارښونه کول.<br>- د ډله ییز فعالیت پایلې د خپلو معلوماتو له مخــې جمع بندي کول.<br>- د زده کوونکو د پوهې د ارزونې لپاره د لوســـت د ورستنیو پوښتنو طرح کول.<br>- له ټولګي څخه د بهر فعالیت لارښوونې کول. | **زده کوونکي** پوښتنو ته ځواب وایي.<br>په چوپه خوله لوست لولي او ستونزمن ټکـــي پـــه نـــښه کوي.<br>او په اړه یې پوښتنه کوي.<br>زده کوونکي ځیر وي او غوږنیسي.<br>د لوست د ستونزمنو ټکو پوښتنه کوي.<br>زده کوونکي په ډلو ویشل کېږي او پـــه ډلـــو کـــې د سیندونو د اقتصادي ارزښت په هکله بحث کـــوي او د بحث پایلې د ډلې استازي ټولګیوالو ته وایې.<br>زده کوونکي ځوابونه ورکوي. | ۳۵ دقیقې |

۸- د متن د پوښتنو ځوابونه

۱- د دنیوب سیند په خپل بهیر کې له څو هیوادونو څخه تیریږي او د المان په هیواد کې د تور ځنګل له غرونـــو څخـــه سرچینه اخلي، راین سیند د فرانسې او المان څخه تیریږي او هالند ته ننوزي او د اطلس په سمندر کې توییږی.

۲- د اروپا د سیندونو له اوبو څخه د اوبه خور لپاره ګټه اخیستل کېږي او همدارنګه د بیړیو چلولـــو او د ســـوداګریزو مالونو د وړلو او راوړلو لپاره هم زیات ارزښت لري.

د لوست د ورستنیو پوښتنو ځوابونه

۱ -لومړۍ پوښتنه ناسمه ده.

۲- دویمه پوښتنه سمه ده.

۳- دریمه پوښتنه سمه ده.

۴- څلورمه پوښتنه سمه ده.

۵- پنځمه پوښتنه ناسمه ده.

**۹– د ښوونکو لپاره اضافي معلومات**

د اروپا د لويې وچې سيندونه په دوو برخو ويشل کېږي شمالي سيندونه او سويلي سيندونه.

د شمالي اروپا سيندونه د کال په اوږدو کې زياتره د اوبو منظم رژيم لري خو د سويلي اروپا سيندونه اوږده بهيرونه لـــري او د کال په تاوده موسم کې يې د اوبو اندازه لږيږي.

د اروپا زياترسيندونه له منځنيو لوړو څخه سرچينه اخلي او د آسيايي سيندونو پرخلاف لږ مستيږي او د مستيدو په موسم کې هم د خپل بستر شاوخوا سيمو ته دومره زيانونه نه اړه وي، د آسيا زياتره سيندونه تاوراتاو او په ډير ځوړ بهيږي او د بيړيو چلولو وړنه دي.

په داسې حال کې چې د اروپا له څو کوچنيو سيندونو څخه پرته نورټول سيندونه د بيړيو چلولـــو وړدي د بهرنيـــو او د کورنيو مالونو په وړلو راوړلو کې زيات ارزښت لري.

د اروپا د سيندونو د اوبو حجم د آسيا د سيندونو د اوبو د حجم په پرتله ډير لږ دي، سربېره پردې د اروپا له ســـيندونو څخه د کرنې او صنايعو لپاره ډيره ګټه اخيستل کېږي.

ددې سيندونو په شاوخواکې ډېر وګړي استوګنه کوي د اروپا ډير مهم او اوږدسيند د والګاسيند دی، د نيپر سيند هم په اوکراين کې بهيږي، د دنيوب سيند د اروپا په منځنۍ او سويل ختيځه برخه کې بهيږي، په خپل اوږده بهير کې لـــه څـــو اروپايي هيوادونو څخه د تيريدو وروسته په تور سمندر کي تويئږي. په اروپا کې په دننيو وړلو او راوړلو کې ډير زيـــات ارزښت لري، د اروپا له نورو مهمو سيندونو څخه کولای شو په المان کې د الب سيند او په فرانسه کې د سن او لورا د سيندونو نومونه واخلو.

## د څلورم لوست د تدریس د لارښود پلان

**د تدریس وخت: یو درسي ساعت**

| سرلیکونه | دمطلبونو تشریح | |
|---|---|---|
| **۱- د زده کړې موضوع** | د اروپا جهیلونه | |
| **۲- د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې** | زده کوونکي باید د درس په پای کې لاندې موخوته ورسیږي.<br>هراړخیزه موخه:<br>د اروپا د جهیلونو له مفهوم سره اشنا کېدل.<br>جزیې موخې:<br>- د جهیلونو د اوبو د خوند په هکله پوهېدل.<br>- د معتدلې منطقې د جهیلونو پېژندل.<br>- د اروپا لویې وچې د جهیلونو موقعیت پېژندل.<br>- د اروپا د لویې وچې د جهیلونو اقتصادي اهمیت درک کول.<br>- په نقشه کې د اروپایي جهیلونو موقعیت و ښودلی شي.<br>- د ژوند په چاپیریال باندې د جهیلونو د اغیز په هکله د زده کړې حاصلول. | |
| **۳- د زده کـــــړې د لاروچـــــارو (میتودونو) وړاندیزونه.** | تشریح کول، پوښتنې او ځوابونه، او ډله ییز بحث. | |
| **۴- د زده کړې مرستندویه توکې.** | د اروپا طبیعي نقشه، د یوه جهیل انځور، کتاب، تخته او تباشیر. | |
| **۵- ارزونه** | شفاهي، لیکلې، د نقشې پرمخ کارکول او پوښتنې. | |
| **۶- په ټولګي کې د درس او زده کړې فعالیتونه.** | **پیلوونکي فعالیتونه:** په مروجه طریقه ټولګي ته ننوتل (سلام اچـــول، روغبړ کول) د ټولګي تنظیمول، د حاضرۍ اخیستل، او د تیر لوست ارزونه، د زده کوونکو لخوا له ټولګي څخه د بهر فعالت ټولګیوالو ته وړاندې کول.<br>هڅوونکي فعالیتونه:<br>-په توره دړه د سرلیک لیکل.<br>- د ټولګي مخې ته د اروپا د طبیعي نقشې ځړول.<br>- هڅوونکې پوښتنه: آیا پوهیږئ چې د اروپـــا کـــوم هیـــواد د زرو جهیلونو د هیواد په نوم یادیږي؟ | **وخت ۵ دقیقې**<br><br><br><br><br><br>**۵ دقیقې** |

| ۷- د ښوونکي درسي فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| ● د درس د سرلیک لیکل او هڅوونکې پوښتنې طرح کول<br>● زده کوونکو د تېروتنو اصلاح کول.<br>● په چوپه خوله د نوي لوست دلوستلو او د ستونزمنو ټکو د لیکلو هدایت ورکول.<br>● د درس مهمو جغرافیوي اصطلاحات تعریفول.<br>● وروسته د نقشې پرمخ د اروپا د لویو جهیلونو د موقعیت په هکله پوښتنې کوي.<br>۱- بیا پوښتنه کوي د اروپا د جهیلونو اوبه څنګه خوند لري؟<br>۲- بله پوښتنه کوي چې لوی جهیلونه په کومو اروپایې هیوادونو کې موقعیت لري؟<br>● د جهیلونو موقعیت په نقشه کې ښیي.<br>۳- بیا پوښتنه کوي چې جهیلونه څه اقتصادي اهیمت لري؟<br>● د زده کوونکو ځوابونه اصلاح او درس تشریح کوي.<br>● زده کوونکو ته د ډله ییز فعالیت لارښوونه کوي او دهرې ډلې لپاره د بحث موضوع ټاکي.<br>د درس د پای پوښتني طرح کوي<br>له ټولګي څخه د بهر فعالیت لارښوونه کوي . | ● د ښوونکي پوښتنې ته ځواب وایي.<br>● د محترم ښوونکی توضیحاتو ته غوږ نیول.<br>● نوی لوست لولي او ستونزمن ټکي یادداشت کوي.<br><br>● نقشې ته ګوري او دلویو جهیلونو موقعیت ښیي.<br>۱- ځواب ورکوي خوږې اوبه لري.<br><br>۲- نقشې ته ګوري اود هغو هیوادونو چې په هغو کې لوی جهیلونه پراته دي نومونه وایي.<br>۳- د جهیلونو د اقتصادي ارزښت په هکله خبرې کوي.<br><br>● زده کوونکي په ډلوکې تنظیم کېږي او د کتاب د نقشې له مخی ځوابونه لټوي او د کار پایله ټولګیوالوته وړاندې کوي.<br>● زده کوونکې ځواب ورکوې | ۳۵<br>دقیقې |

**۸- هڅوونکی او د متن د پوښتنو ځوابونه:**

۱- د فنلند هیواد د زرو جهیلونو د هیواد به نوم یادیږي.

۲- د جهیل په نوم یادیږي.

۳- د بیړۍ چلولو، اوبه خور، کب نیول او لامبو و هلو. لپاره ورڅخه ګټه اخیستل کېږي.

**د لوست ورستنۍ پوښتنو ځواب.**

ډېر سم ځواب د د فنلند هیواد دی

لنډ ځواب ورکړئ.

۱- هغه پراخې ولاړې اوبه چې د ځلورو خواو څخه يې وچه را چاپیره شوي وي جهیل نومېږي.

۲- د اروپايي جهیلونو د اوبو خوند خوږ دی. یو دلیل يې دا دی چې د معتدلی او د ډېر باران لرونکوسیمو جهیلونه چې اروپا هم په هغې کې شامله ده او بل داچې دا جهیلونه د پخوانیو کنګلونو پاتې شوني دي.

**۹- د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

**د اروپا جهيلونه**

جهيلونه له سمندرونو او سمندرګيو څخه وروسته د اوبو لويې سرچينې دي، چې د ځمکې د مخ ۱/۸ برخه يې نيولې ده. د اوربښت لرونکو سيمو جهيلونه چې په هغه کې د اوربښت اندازه د براس په پرتله زياته وي يا د سيندونو سرچينې جوړوي معمولاً يې اوبه خوږې وي. خو په صحرايي سيموکې چې د اوبو د براس کچه يې د راغلو اوبو په پرتله زياته وي اوبه يې تروې (مالګينې) وي. د اروپا لويې وچې په مختلفو سيمو کې جهيلونه شته دي، چې د هغو پر اخوالي، ژوروالي او د سمندر د اوبو له مخ څخه يې لوړوالی توپيرلري، زياتره يې د اروپا په شمال کې د سکند يناوي په ټاپو وزمه کې واقع شوي دي. له دې امله د فنلند هيواد د زرو جهيلونو د هيواد په نوم يادشوی دی. جهيلونو د دې هيواد په سلوکې ۱۲ خاوره نيولې ده.چې ډېر لوی جهيل يې په جنوب ختيځ کې د سايما Saima او په جنوب کې پايي جانا Pai janna نوميږي. په دې پوهيدل چې يو جهيل له کوم ځای څخه پيل او په کوم ځای کې ختم شوي دي ستونزمن دي ځکه چې ټول جهيلونه د سيندونو په واسطه يو دبل سره نښتي دي.

د جهيلونو بله سيمه د غونډيو او سخرو (کلکو ډبرينو سيمو) ترمنځ واقع شوې ده، د مثال په توګه د روسيې هيواد په لويديځ کې د لادوګا Ladoga جهيل د ۱۸۳۹ کيلومترو مربعو په پراخوالي او د انګاه onega جهيل د ۹۶۰۰ کيلومتر مربع په پرخوالي پراته دي.

د جهيلونو دريمه حوزه د الپ په غرونوکې ده، چې د هغو د اوبو سرچينه ويلې شوې واورې جوړوي.دا جهيلونه د شګلنو غرونو پواسطه چې د واورې د ښويدنې(برف کوچ) او يخچالونو په واسطه راوړل شوي را چاپير شوي دي او ځينې يې د سيندونوسرچينې جوړوي، چې ډېر لوی جهيل يې د سويس هيواد په لويديځ کې د فرانسې هيواد په سرحدي پوله کې جينوا Geneva او بل يې کونستانت Konstanzد سويس د هيواد په شمال ختيځ کې پروت دی.

د دې حوزې ځوان او لوی جهيل بالتون Balaton د هنګري په هيواد کې دی، چې په کښته تللې ځمکې په کتله کې د دووماتو شوو برخو تر منځ چې ډېره ژوره هم نه ده او د يخچالونو په دوره کې منځته راغلې ده تشکيل شوي دي.

د هميشنيو جهيلوسر بيره موسمي جهيلونه هم شته چې د اوربښتونو اوسيلابونو په واسطه منځته راغلي او وروسته و چيږي.

د تکتونيک اصطلاح د جغرافيې د کتاب په ورستنۍ برخه کې تشريح شوې ده.

## د پنځم لوست د تدریس د لارښود پلان

د تدریس وخت – یو درسي ساعت

| سرلیکونه | دمطلبونو تشریح | |
|---|---|---|
| ۱– د زده کړې موضوع | د اروپا سمندرګي | |
| ۲– د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې. | زده کوونکي باید د درس په پای کې لاندې موخوته ورسیږي.<br>هراړخیزه موخه:<br>د اروپا د لویې وچې له سمندرګیو سره اشنایي.<br>جزیې موخې:<br>– د مدیترانې د سمندرګي جغرافیایي موقعیت و پیژني.<br>– د اروپا د سویلي آبناء ګانو اقتصادي اهمیت تشریح کړي.<br>– د اروپا د لویدیځو سمندرګیو اقتصادي اهمیت په هکله توضیح ورکړي.<br>– د اروپا په شمالي سمندرګیو کې د بیړیو چلولو علتونه توضیح کړي.<br>– د اروپا د سمندرګیو د ښودلو لپاره له نقشې څخه ګټه واخیستلې شي.<br>د خدای (ج) د نعمتونو د قدردانۍ روحیه غښتلې کول. | |
| ۳– دزده کـــړې د لاروچـــــارو (میتودونو). وړاندیزونه. | تشریح کول، لوستل، پوښتنې او ځوابونه او ډله ییز فعالیت | |
| ۴– د زده کړې مرستندوی توکي. | د اروپا طبیعي نقشه، کتاب، تخته او تباشیر. | |
| ۵– ارزونه | شفاهي، لیکلي او له ټولګي څخه بهر فعالیتونه. | |
| ۶– په ټولګي کـــې د درس او زده کړې فعالیتونه | پیلوونکي فعالیتونه: په مروجه طریقه ټولګي ته ننوتل، (سلام او روغبـــړ کول) د ټولګي تنظیمول، د حاضرۍ اخیستل، د تیر لوست ارزونه او د زده کوونکو لخوا ټولګیوالوته له ټولګي څخه د بهر فعالیـــت وړانـــدې کول.<br>هڅوونکي فعالیتونه: په توره دړه د سرلیک لیکل، د ټولګي مـــخ تـــه د نقشې ځړول او په نقشې کې د اروپا د سمندرګیو ښودل.<br>هڅوونکې پوښتنه: ولې د اروپا په لویه وچه کې ډیر سمندرګي شته.؟ | ۵ دقیقې<br><br><br><br>۵ دقیقې |

| ۷- د ښوونکي درسي فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | وخت |
| --- | --- | --- |
| ● له زده کوونکو څخه غواړي چې سمندرګی تعریف کړي. | د تېرکال د معلوماتو پر بنسټ د سمندرګي تعریف کوي. | ۳۵ دقیقې |
| ● د زده کوونکوله نظریاتو و روسته صحیح ځواب تشریح کوي. | زده کوونکي نوي لوست په چوپه خوله لولي او هغه څه چې پرې نه پوهیږي پوښتنه کوي. | |
| ● په چو په خوله د نوي لوست لوستل او دستونز منو کلموپه نښه کول. | ● د نقشې په مرسته له سویل څخه شمال لورته د سمندرګیو نومونه اخلي. د مدیترانی سمندرګی، د مانش سمندرګی، د شمال سمندرګی او داسې نوردي. | |
| ● د زده کوونکو پوښتنوته ځواب وایي او وروسته پوښتنه کوي. داروپا طبیعي نقشې ته وګورئ که چیرې د اروپا له سویل څخه شمال لورته د بیړۍ په واسطه حرکت وکړو له کومو سمندرګیو څخه به تیرشو؟ | ● زده کوونکي د متن په مرسته ځواب وايي. | |
| ● بیا پوښتنه کوي، ډیر پراخ سمندرګی کوم یو دی؟<br>● وروسته د مدیترانې او نورو سمندرګیو موقعیت د نقشې له مخې تشریح کوي.<br>● بیا هم پوښتنه کوي چې دا سمندرګي به د اروپا او د نړۍ په اقلیم او اقتصاد باندې څه اغیزه ولري.<br>● ښوونکی د مدیترانې د سمندرګي اغیزې توضیح کوي.<br>● د نقشې پر مخ د اروپا شمالي سمندرګي او آبناء ګانې ورته ښيي. | ● د سمندرګي د ساحلي سیمو اقلیم مرطوب کوي او د کبانو ښکارکول د بیړیو چلولو، د تفریحي ځایونو، لامبو وهلو د کانونو را ایستلو او داسې نورې اقتصادي ګټې هم لري. | |
| ● ټولګی په څوډلوویشي او هرې ډلې ته بیله پوښتنه ورکوي او د فعالیت د څرنګوالي په هکله توضیح ورکوي او څارنه یې کوي. | زده کوونکی په ډلو کې تنظیم کېږي و هره ډله د پوښتنې د ځواب په هکله په خپل منځ کې بحث کوي او پایلې ټولګیوالوته بیانوي. | |
| ● د فعالیت پایلې جمع بندي کوي. | د پوښتنو ځوابونه وايي | |
| ● ښوونکی دې د زده کوونکو د پوهې ارزونه وکړي.<br>● ښوونکی دې د درس لنډیز و وایي او له ټولګې څخه د بهر فعالیت هدایت دې ورکړي. | | |

| |
|---|
| **۸– هڅوونکي پوښتنې ځواب په دوو خواوکې د سمندرونو شتون (په شمال او لویدیځ کې) او تکتونیکي ژورې.**<br>**د فعالیت د پوښتنو ځوابونه**<br>**۱– د سویز کانال د مدیترانې او احمر (سور) سمندرګي سره نښلوي.**<br>**۲– د تروندهیم او برګین بندرونه د ناروې هیواد په لویدیځ کې ناروې د سمندرګي په غاړه او دارخنګلسک بندر د سپین سمندرکي په ختیځه غاړه کې د روسیې په شمال لویدیځ کې پروت دی.**<br>**۳– د باسفورس آبناء تور سمندرګی د مرمری له سمندرګي سره او د دردانیل آبناء د مرمري سمندرګي د مدیترانې له سمندرګي سره نښلوي.**<br>**د درس د پای پوښتنو ځوابونه**<br>**۱– د مدیترانې سمندرګی د افریقا او اروپا لویې وچې سره بیلوي.**<br>**۲– د اروپا د لویې وچې په شمال کې د بارنتس سمندرګی پروت دی.**<br>**۳– د جبل الطارق آبناء د اتلانتیک سمندر له مدیترانې سمندرګي سره نښلوي.**<br>**لاندې جملې بشپړې کړئ.**<br>**۴– د سویز کانال په کیندلو سره د اتلانتیک سمندر د مدیترانې او سور سمندرګي له لارې د هند له سمندر سره نښول شوی دی.** |
| **.۹– د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**<br>**د اروپا سمندرګی**<br>**– سمندرګی sea:دا اصطلاح د ځمکې د کرې پر مخ هغو پراخو مالګینو اوبو لپاره استعمالیږي، چې د آبناګانو په واسطه د سمندرګیو او سمندرونو (اقیانوسونو) سره نښتې وي لکه د مدیترانې سمندرګی، تور سمندرګی، د احمر(سور) سمندرګی او نور.**<br>**– د سمندرونو د اوبو یوه برخه چې په ځانګړې نوم سره نومول شوې وي لکه د شمال سمندرګي د ناروې سمندرګی د عمان سمندرګی، د چین سمندرګی اونور.**<br>**– هغه مالګینې پراخې اوبه چې په وچه کې موقعیت ولري لکه د کسپین سمندرګی، د بحرالمیت سمندرګي او نور.**<br>**د اروپا د لویې وچې په سمندرګیوکې ډیرلوی یې د مدیترانې سمندرګي دی، چې د ډیرو پخوا زمانوڅخه یې تر اوسه د بیړیو چلولو په برخه کې غوره رول لوبولی دی او په غاړو یې د تاریخ په اوږدو کې لوی سوداګریز بندرونه او ښارونه جوړشوی دي.نن ورځ هم د اوبو سوداګیریزې نړیوالې لارې پکې غزیدلې دي او د جبل الطارق د آبناء لارې د اتلانتیک سمندر سره نښتي ده.**<br>**– د بالتیک سمندرګی د سکاګیراک Skagerrak، کاتیګات Kattegat او د دنمارک د انباء ګانوله لارې د شمال سمندرګی سره نښتی دی، د کبانو د ښکارولو او د بیړیو چلولو لپاره یې ښه شرایط برابر کړي دي. په ځانګړې توګه په هغه وخت کې چې د المان د هیواد په شمال کې د کیل Kial کانال و کیندل شو او د البه سیندېې د بالتیک سمندرګې سره و نښلولو ډیر زیات ارزښت یې پیداکړ.**<br>**– د ناروې سمندرګی چې د اسکندینا ویاد ټاپو وزمې په لویدیځ کې پروت دی او د ګلف ستریم د تودو اوبو د بهیر په سبب نه کنګل کیږي، د کبانو د ښکارولو او بیړیو چلولو لپاره یې ډیر ښه شرائط برابر کړي دي. د دې سمندرګي په شمال ختیځ کې د بارنتس Barents سمندرګی پروت دی او هغه هم د ګلف ستریم د تودو اوبو د بهیر په سبب چې د دې سمندرګې د سویل ختیځ په لور روان دی نه پریږدي، چې په ژمي کې کنګل شي، دا سمندرګی هم د کبانو ښکار او د بیړیو چلولو لپاره ډیر ښه برابر دی.** |

# د شپږم لوست د تدریس د لارښود پلان

د تدریس وخت: یو درسي ساعت

| سرلیکونه | د مطلبونو تشریح | |
|---|---|---|
| ۱– د زده کړې موضوع | د اروپا د لویې وچې خلیجونه | |
| ۲– د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنيتي)موخې | زده کوونکي باید د درس په پای کې لاندې موخوته ورسیږي.<br>هراړخیزه موخه<br>د اروپا د خلیجونو سره اشنا کیدل<br>جزیې موخې<br>– د خلیج اصطلاح تعریف کړي.<br>– د اروپا د خلیجونو د منځته راتلو علتونه توضیح کړي.<br>– د خلیجونو اغیزې د اروپا په اقتصادي پرمختګ کې تشریح کړي.<br>– د اروپا د کوچنیو خلیجونو اقتصادي ارزښت بیان کړي.<br>– په نقشه کې د اروپا د خلیجونو موقعیت وښایي.<br>– د خلیجونو د چاپیریال ساتنې په هکله دمسؤولیت احساس کړي. | |
| ۳– د تدریس د لارو (میتودونو) وړاندیزونه. | تشریح کول، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیت او په چوپه خوله لوستل. | |
| ۴– د زده کړې مرستندوی توکي. | داروپا د لویې وچې نقشه، په یو بندر پورې اړونده انځور، توره دړه، تباشیر او درسي کتاب | |
| ۵– ارزونه. | شفاهي لیکلي اوله ټولګي ځخه بهر فعالیت. | |
| ۶– په ټولګي کې د درس ورکولو فعالیتونه. | پیلوونکي فعالیتونه: په مروجه طریقه ټولګي ته ننوتل (سلام اچول، روغبړ کول) د ټولګي تنظیمول، د حاضرۍ اخیستل، د تیر لوست ارزونه او د زده کوونکو په واسطه د ټولګي ځخه د بهر فعالیت وړاندې کول. | ۵ دقیقې |
| | هڅوونکې فعالیتونه: په توره دړه د سرلیک لیکل، د ټولګي مخ ته د اروپا د طبیعي نقشې ځړول او هڅونکې پوښتنې طرح کول.<br>هڅوونکې پوښتنه د خلیجونو څخه څه ګټه اخیستل کیږي؟ | ۵ دقیقې |

| ۷- د ښوونکي درسي فعالیتونه (دمفاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکي د زده کړې فعالیتونه | درس ساعت |
|---|---|---|
| • د خلیج مفهوم او ارزښت په هکله د پوښتنې طرح کول.<br>• د زده کوونکو د نظریاتو وروسته خلیج تعریف کوي.<br>• په چوپه خوله د نوي درس لوستلو او دستونزمنو کلمو د په نښه کولو هدایت ورکوي.<br>• ستونزمن لغات او اصطلاحات توضیح کوي.<br>• د پوښتنې طرح کول په دې هکله چې ولې په اروپا کې زیات شمیر خلیجونه شته دي؟<br>• د زده کوونکو د ځواب د بشپړیدو وروسته پوښتنه کوي، چې د بیړیو چلولو وړ خلیجونه کومې ځانګړتیاوې لري او له کوچنیو خلیجونو څخه څه ګټه اخیستل کیږي؟<br>• د زده کوونکو د نظریاتو د دراټولولو وروسته ښوونکی درس تشریح کوي او لنډیزېې وایي او خپل وروستي نظریات بیانوي.<br>• ټولګی په ډلو ویشي او دهرې ډلې مشر ټاکي او هرې ډلې ته یو علمي نوم غوره کوي او د اروپا د بې لیکنې نقشې پرمخ د لویو خلیجونو موقعیت ټاکي.<br>• د درس د پای پوښتنې طرح کوي.<br>• د ټولګي څخه د بهر فعالیت په هکله لار ښوونه کوي. | • د تیرکال د درسونو پربنسټ د خلیجونو په هکله نظر ورکوي.<br>• په چوپه خوله درس لولي او دستونز منو کلمو پوښتنه کوي.<br>• په دریو خواوکې د سمندرونو او سمندرګیو شتوالی.<br>• پراخ او ژور خلیجونه د بیړیو چلولو وړدي او کوچني خلیجونه د کبانو نیولوته برابردي.<br>• زده کوونکي په ډلو کې تنظیم کیږي او د مخه کاپي شوې نقشې باندې د اروپا د نقشې له مخې د خلیجونو نومونه لیکي.<br>• زده کوونکی ځواب ورکوي | ۳۵ دقیقې |

۸- د هڅوونکې پوښتنې ځواب: د خلیجونو څخه د بیړیو چلولو، کبانو نیولو او کانونو رایستلو له پاره ګټه اخیستل کیږي.

د درس د پای پوښتنو ځوابونه

صحیح ځواب غوره کړئ.

۱- صحیح دی ۲- غلط دی ۳- تریست، تارنتو، لیون او جینوا

۴- پراخ او ژور خلیجونه بیړیو چلولوته برابر دی.

**۹– د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

**د اروپا خلیجونه:**

د نړۍ د یو شمیر ساحلي هیوادونو خلیجونه د نا برابرو شرایطو د شتوالی په سبب په طبیعي توګه د بیړیو چلولو لپـــاره لـــه هغو څخه ګټه نشي اخیستلای. د وړلو او راوړلو لپاره د پراخو او ژورو خلیجونو څه ګټه اخیستل کېږي، ځکه چې د بیړۍ د بدنی ۱/۳ برخه د اوبو لاندې وي، نو ځکه په لږو ژورواو ختینو خلیجونو کې بیړۍ نشي کولای ساحل ته نـــږدې شـــي، باید په ژورو اوبو کې لنګرو اچوي. دې ژورې سیمې ته د رسیدلو لپاره باید د ځانګړو پلونو څخه ګټه واخیستل شي، چې دا کار زیات لګښتونه غواړي.

کوچني خلیجونه هم دلویو بیړیو د چلولو لپاره برابر نه دي.

* توجه! د درسي کتاب د اضافي معلوماتو تر سرلیک لاندې جدولونه په ازموینه کې نه شاملیږي.



## د اووم لوست د تدریس د لارښود پلان

د تدریس وخت: دوه درسي ساعتونه

| سر لیکونه | دمطلبونو تشریح | |
|---|---|---|
| ۱- د درس موضوع | د اروپا اقلیم څرنګه دی؟ | |
| ۲- دزده کـــــــړې (پـــوهنیزې، مهـــارتي او ذهنیتي)موخې. | زده کوونکي باید د درس په پای کې لاندې موخوته ورسیږي.<br>هراړ خیزه موخه<br>د اروپا له اقلیم سره اشنا کیدل.<br>جزیې موخې:<br>- په دې پوهیدل چې اروپا په معتدله اقلیمي منطقه کې پرته ده.<br>- د اروپا په ډول ډول اقلیم پوهیدل او د نقشې پرمخ د هغو ښوول.<br>- په دي پوهیدل چې بادونه هم د اروپا پر اقلیم اغیزه اچوي.<br>- هغه عوامل چې د اروپا پر اقلیم اغیز من دی بیانول. | |
| ۳- د تدریس د لاروچارو (میتودونو) وړاندیزونه. | توضیح کول، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییزه بحث او د متن لوستل | |
| ۴- د تدریس مرستندویه توکي. | د نړۍ طبیعي نقشه، د اروپا د ځینو طبیعي منظرو انځورونه، د کتاب نقشې او انځورونه. | |
| ۵- ارزونه | شفاهي، لیکلي، عملي کار او له ټولګي څخه بهر فعالیت | |
| ۶- په ټولګي کې د درس ورکولو فعالیتونه. | پیلوونکي فعالیتونه: ټولګي ته په مروجه طریقه ننوتل (ســـلام او روغبـــړ کـــول) حاضري اخیستل، د ټولګي تنظیمول، د تېر لوست ارزونه او د زده کوونکو پـــه واسطه د ټولګي څخه د بهر فعالیت وړاندې کول. | ۵ دقیقې |
| | هڅوونکي فعالیتونه: په توره د ړه د سرلیک لیکل، د ټولګي مخ تـــه د اروپـــا د اقلیمي نقشې ځړول.<br>په توره دړه د اروپا داقلیم مهم ټکي لیکل او د نقشې په مرسته د زده کوونکـــو څخه وغواړئ چې د اروپا موقعیت له شمالي قطب څخه د استواتر کرښې پورې وټاکي.<br>د زده کونکو پام د کتاب د آب و هوا نقشې ته راواړوئ او د زده کونکو څخه پوښتنه وکړئ. چې اروپا ولې معتدل اقلیم لري. | ۵ دقیقې |

| ۷– د ښوونکي درسي فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالتونه | وخت |
|---|---|---|
| په توري درې د سرلیک لیکل او هڅوونکي پوښتنې طرح کول.<br>● په چو په خوله د نوي لوست لوستل او دستونزمنو اصطلاحاتو په نښه کولو لارښوونه.<br>● پوښتنو ته ځواب ورکوي.<br>● د اروپا له اقلیمي نقشې څخه په ګټې اخیستنې د آب او هوا ډول ډول ځانګړتیاوې توضیح کوي او هم هغه بادونه چې اروپا اغیزمنه کوي بیانوي او د نقشې پرمخ یې ورښیي.<br>● ټولګی په ډلوویشي او د فعالیت موضوع یې ور په ګوته کوي.<br>● د ډله ییز فعالیت نظارت او لارښوونه کوي.<br>● د ډله ییز فعالیت پایلې راټولوي.<br>● خپل ورستني نظریات بیانوي.<br>● د څو اروپایي هیوادونو آب او هوا تشریح کوي.<br>● د زده کونکو د پوهې ارزونه کوي.<br>● له ټولګي څخه د بهر فعالیت لارښوونه کوي. | – پوښتنې ته ځواب ورکوي.<br>– په چوپه خوله نوی لوست لولي او د لوست د ستونزمنو ټکو پوښتنه کوي.<br>– د نوي لوست تشریح ته ځیروي او له ښوونکي څخه د مهمو ټکو پوښتنه کوي.<br>زده کوونکی په ډ لوویشل کېږي او د څرول شوي نقشې په مرسته د اروپا د ډول ډول آب او هوا په هکله بحث کوي.<br>– د بحث پایلې د ډلې آستاذی ټولګیوالوته بیانوي.<br>– د پوښتنو ځوابونه وایي.<br>– له ټولګي څخه د بهر فعالیت ته پاملرنه کوي. | ۳۵ دقیقې |

۸– د هڅوونکي او د متن د پوښتنو ځوابونه:

۱– اروپا په معتدله منطقه کې پرته ده او دریو خواو ته یې اوبه دي. د اروپا د لویې وچې ټولې برخې د پوره لندبل څخه برخمني دي، د اروپا غرونه دومره لوړ نه دي چې د سمندرونو او سمندرګیو د لنده بل خنډشي د ګلف ستریم بهیر هم د دې لویې وچې د آب و هوا د معتدل کیدلو سبب شوی دی.

۲- د اروپا منځنۍ او ختیځې سیمې وچه (بری) آب او هوا لري، لامل یې دادی، چې له سمندرونو او سمندرګیو څخه لېرې ده او د لرې لندبل په سبب وچه یا قاره یي آب او هوا لري.

د لوست ورستیو پوښتنو ځوابونه

۱- مدیترانه یې آب و هوا دوه ځانګړتیاوې لري. ژمی یې معتدل او مرطوب او اوړی یې تود او وچ وي.

۲- د اطلس دسمندر سیمې سمندری آب و هوا لري، اقلیم یې په اوړي اوژمي کې تود او مرطوب وي.

۳- د اروپا شمالي برخې قطبي سیموته د نږدیوالي په سبب سړه او وچه آب و هوا لري. دلته له باران څخه واورې ډیرې اوري، د ډیرې سړې هوا په سبب د سمندرونو او سمندرګیو اوبه د کال په اوږدوکې له ۵ څخه تر ۸ میاشتو کنګل وي.

۹- د ښوونکي لپاره اضافي معلومات

د اروپا د لویې وچې غوره اقلیمونه عبارت دی له:

سمندري اقلیم، بري (وچ) اقلیم، معتدل اقلیم، غرنی اقلیم، سوړ قطبي اقلیم او مدیترانه یې اقلیم. د یادونې وړده چې د غرونو، سیمه ییز شرایط، لوړوالی او نور عوامل کله کله اقلیم ته خاصې ځانګړتیاوې ورکوي. سربیره پردې صنعتي لوی ښارونه په زیاتو علتونو (ګڼو جوړښتونو، صنعتي فعالیتونو، د نقلیه وسایطو د وړلو، راوړلو د ګڼې ګوڼې په سبب) ځانګړي سیمه ییز اقلیم لري چې په خپله شاوخواکې په ځینو نورو ستونزو سره، دهغې له جملې څخه د د چټلتیا او لندبل سره مخامخ دي.

۱- سمندري اقلیم: هغه سیمې چې ددې آب و هوا تر اغیزې لاندې دي عبارت دی د ایسلند د ټاپوسویل، د اسکندیناوي دټاپووزمې لویدیځ، د المان شمال، د فرانسې شمال او لویدیځ، دایبرى د ټاپووزمې شمال، ټول انګلیستان او ایرلینډ څخه.د ګلف ستریم سمندري بهیر هم د اروپا د سمندري اقلیم د آب او هوا د تاثیر لاندې سیمو په معتدل کیدلو کې اغیزه لري.

په دې ډول اقلیم کې ټول کال اورښت اوري، د میاشتنی تودوخې منځنۍ درجې توپیر یې دله یو بل سره چندان نه وي.

۲- وچ (بري) اقلیم: د ختیځې اروپا، د روسیې اروپایي برخې، د تور سمندرګي ترغاړو او د اورال د لړۍ په اړ دوکې وچ (بري) یا قارډیي اقلیم لري. په دې ډول اقلیم کې د کلنۍ تودوخې د درجی بدلون ډیر زیات وي. د سمندری اقلیم په پرتله وچه هوا او لږ اورښت د دې اقلیم له ځانګړتیاوو څخه دي.

۳- غرنی اقلیم: هغه سیمې چې د دې اقلیم تر اغیزې لاندې دي د سویس او اتریش هیوادونه د منځنۍ او سویلی اروپا استیپي غرنۍ برخې دي په دې اقلیمي سیمي کې ژمي سوړ او واورې اوري. او معتدل اوړی اولږ باران د دې اقلیم له ځانګړتیاووڅخه دي.

۴- قطبي سوړ اقلیم: د اسکندیناوي ټاپووزمې ځینې برخې د اروپایي روسیي شمالي برخې، د ایسلند د ټاپو شمالي برخې د دې اقلیم تر اغیزې لاندې دي، د دې آب و هوا په منطقه کې د اورښت اندازه نسبتاً لږه ده، په ژمي کې یې د تودوخې درجه معمولاً له صفر څخه کښته او اوړی یې لنډ وي.

۵- مدیترانه یې اقلیم: هغه هیوادونه چې ټول او یایې د قلمرو یوه برخه د مدیترانې د سمندرګي په شاوخواکې واقع شوي وي لکه اسپانیه، پرتګال، د فرانسې جنوبي برخې، ایتالیا، البانیه او یونان دا ډول اقلیم لري او ړی یې توداو لمریز اوژمی یې معتدل او باراني وي.

## د اتم لوست د تدریس د لارښود پلان

د تدریس وخت: دوه درسي ساعتونه

| سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱– د درس موضوع | د اروپا د سیاسي جغرافیې په هکله څه پوهیږئ؟ | |
| ۲– د زده کـــــــړې (پـــوهنیزې، مهـــارتي او ذهنیتي) موخې. | زده کوونکي باید د درس په پای کې لاندې موخوته ورسیږي.<br>هراړخیزه موخه:<br>د اروپا له سیاسي جغرافیې سره آشناشي.<br>جزيي موخې.<br>– په دې پوه شي چې اروپا په کومو طول البلدونو او غرض البلدونو کې پرته ده.<br>– د اروپا له هیوادونو سره آشنا شي.<br>– د اروپا د لویې وچې موقعیت او سرحدونه د نقشې پرمخ معلوم کړي.<br>– د اروپا سیاسي واحدونه د نقشې پرمخ بیان کړي. | |
| ۳– د زده کـــــــړی د لاروچـــارو (میتودونـــو) وړاندیزونه. | تشریح کول، لوستل، توضیح کول، ډله ییز بحث، پوښتنې او ځوابونه او عملي کار | |
| ۴– د زرده کـــــــړې مرستندویه توکي. | د اروپا سیاسي نقشه، داروپا د لویې وچې بې لیکنې نقشه، انځورونه، توره دړه او تباشیر. | |
| ۵– ارزونه | شفاهي، لیکلی او عملي کار | |
| ۶– په ټولګي کې د درس ورکولو فعالیتونه. | پیلوونکي فعالیتونه: په مروجه ډول ټولګي ته ننوتل، (سلام او روغبړ کـــول) د ټولګي تنظیمول، د حاضرۍ اخیستل، د تېر لوست ارزونه او د زده کوونکـــو پواسطه له ټولګي څخه د بهر فعالیت وړاندې کول. | ۵ دقیقې |
| | هڅوونکي فعالیتونه: په توره دړه د سرلیک لیکل د ټولګي مخ تـــه د اروپـــا د لویې وچې د سیاسي نقشې ځړول، او په هغې کې د اروپا د لویې وچې طـــول البلدي او عرض البلدي موقعیت ښوول.<br>هڅوونکې پوښتنه: څرنګه کولای شو د اروپا د لویې وچې سیاسي واحدونـــه سره وویشو؟ | ۵ دقیقې |

| د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | ۷- د ښوونکي درسي فعالیتونه (د مفاهیموزده کړه او ارزونه) |
| --- | --- |
| - پوښتنې ته ځوابونه وایي.<br><br>- په چوپه خوله نوی لوست لـــولي او د ســـتونزمنو ټکـــو پوښتنه کوي.<br><br><br>- د درس تشریح ته غوږنیسي.<br>- د درس د مهمو ټکو پوښتني کوي.<br>په ډلو ویشل کېږي او هره ډله د درس په ټاکلي موضـــوع بحث کوي او ډلې مشر د بحث پایلې ټولګیوالوته بیانوي.<br><br><br><br>د پوښتنو ځوابونه وایي. | • د پیلوونکې مرحلې وروسته هڅـــوونکې پوښـــتنه طـــرح کوي.<br>• په چوپه خوله د نوي لوست لوستل او ســـتونزمنوټکو پـــه نښه کول.<br>• ستونزمن اصطلاحات او کلمات توضیح کوي.<br>• درس تشریح کوي.<br>• د نقشې له مخې د اروپا سیاسي واحدونه ورته ښیي.<br>• زده کوونکي په ډلوویشي او هرې ډلـــې تـــه د فعالیـــت موضوع ورپه ګوته کوي.<br>• د ډله ییز فعالیت پایلې راټولوي.<br>• درس خلاصه کوي.<br>• د لوست ورستنۍ پوښتنې طرح کوي.<br>• له ټولګي څخه د بهر فعالیت لارښوونه کوي |

۸- د هڅوونکې پوښتنې ځواب: څرنګه کولای شو چې د اروپا د لویې وچې سیاسي واحدونه سره وویشو؟
د اروپا شمالي هیوادونه لکه، فنلند، سویډن، ناروې، دنمارک او ایسلند.
د اروپا سویلي هیوادونه لکه، یونان، ایتالیا، اسپانیه، پرتګال...
د اروپا ختیځ هیوادونه لکه، روسیه، سپینه روسیه، اوکراین ...
د اروپا لویدیځ هیوادونه لکه، المان، فرانسه، هالیند، بلجیم، انګلستان...
د منځنۍ اروپا هیوادونه لکه اتریش، چک، سلواک، پولیند...

**د لوست د ورستنیو پوښتنو ځوابونه**

۱- اروپا ټاپووز مه د پخوانۍ نړۍ له لویو وچو څخه ده.
۲- اروپا د شمالي عرض البلدونو د ۳۵او ۸۰ درجو ترمنځ پرته ده.
۳- د اروپا ختیځه لیرې نقطه د آسیایي روسیې لویدیځ، لویدیځ لیرې نقطه یې ایسلند، شمالي لیرې نقطه یـــې د نـــاروې د هیواد شمال او سویلي لیرې نقطه یې د کریت ټاپودی.

**۹- د ښوونکی لپاره اضافي معلومات**

د اروپا لویه وچه کولای شو د سیمه ییزو، تاریخي، فرهنګي، او سیاسي ځانګړتیاوو پر اساس په مختلفو جغرافیوي منطقـــو وویشو.

لومړنی جغرافیوي ویش: کولای شو په اروپا کې د جغرافیوي، تاریخي او فرهنګي ځانګړتیاوو ورته والي پر بنسټ ســـرته ورسوو.

کولای شودوهم جغرافیوي ویش د اروپایانو د تولیدي فعالیتونو د څرنګوالي پر بنسټ وکړو.

زیاتره جغرافیه پوهانو له پورتني ترکیب او ویش څخه په ګټې اخیستنې اروپا په ۵ غوره لاندی برخو ویشي.

۱- شمالی اروپا

۲- لویدیځه اروپا (د اطلس د سمندر آروپایې غاړه)

۳- ختیځه اروپا

۴- منځنۍ اروپا

۵- سویلي اروپا (مدیترانه یي)

د شمالي اروپا هیوادونه لکه فنلند، سویدن، ناروي، ایسلند او دنمارک دي. د لویدیځې اروپا هیوادونه: لکـــه انګلیـــستان، فرانسه او کوچني لویدیځ هیوادونه لکه هالند، بلژیک، لوکزمبورک او ایرلیند جمهوریت دی.

منځنۍ اروپا: لکه المان، سویس، لیختن شتین، اتریش، هنګري، بوسني، هرزه ګووینیا او کرواسي دي.

د ختیځې اروپا هیوادونه: لکه پولیند، چک، سلواک، رومانیه، بلغاریه، اوکراین، اروپایې روسیه.

سویلي اروپا: لکه اسپانیه، پرتګال، البانیا، یونان، سان مارینو، مالت، ایتالیا او مقدونیا (سیرویا) دي.

## د نهم لوست د تدریس د لارښود پلان

د تدریس وخت: دوه درسي ساعتونه

| سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱- ددرس موضوع | د اروپا د بشري جغرافیې په هکله څه پوهېږئ | |
| ۲- د زده کړې (پوهنیزي، مهارتي او ذهنیتي) موخې | زده کوونکي باید د درس په پای کې لاندې موخوته ورسیږي.<br>هر اړخیره موخه<br>د اروپا د لویې وچې له بشري ځانګړتیاوو او سره اشنا کیدل.<br>جزیې موخې<br>- د نفوسو د ګڼوالي له اغیز منو عواملو سره اشنا کیدل.<br>- د اروپا د لږ نفوسه اوګڼ نفوسه سیمو پیژندل.<br>- د اروپا دنفوسو دودې په لږ والي پوهیدل.<br>- د هغو عواملو پیژندل چې د اروپا د نفوسو د ګڼوالي سبب شوي دي.<br>- د اروپا د نژادي ډلو پیژندل. | |
| ۳- د زده کړې د لاروچاور (میتودونو) وړاندیزونه. | توضیحي، پوښتنې او ځوابونه، لوستل، او ډله ییز فعالیت | |
| ۴- د زده کړې مرستندوی توکي. | د اروپا د نفوسو نقشه، درسي کتاب، د ګڼ نفوسو هیوادونو ځینې انځورونه د جغرافیې د کتاب نقشې او انځورونه، توره دړه اوتباشیر. | |
| ۵- ارزونه | شفاهي، لیکلی او عملی کار | |
| ۶- په ټولګي کې د درس ورکولو فعالیتونه. | پیلوونکي فعالیتونه: ټولګي ته په مروجه طریقه ننوتل(سلام او روغبړ کول).د ټولګي تنظیم، حاضري اخیستل، د تېر لوست ارزونه او د زده کوونکو پواسطه له ټولګي څخه د بهر فعالیت وړاندې کول،<br>هڅوونکي فعالیتونه: په توره دړه د سرلیک لیکل او د ټولګي مخ ته د اروپا د نفوسو د نقشې ځړول.<br>د درس په پیل کې له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د کتاب د نفوسو نقشې او انځورونو ته پام وکړي.<br>هڅوونکې پوښتنې: ولې د اروپا لویه وچه له لږ پراخوالي سره سره یوه د نفوسو ډکه لویه وچه ده؟<br>د اروپا د لویې وچې زیاتره خلک په کومو سیمو کې ژوند کوي؟ | وخت<br>۵ دقیقې<br><br>۵ دقیقې |

| وخت | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | ۷– د ښوونکي درسي فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) |
|---|---|---|
| ۳۵ دقیقې | – هڅوونکو پوښتنو ته ځواب ورکوي.<br>– د نقشې او انځورونو څخه پوښتنې کوي.<br>– په چوپه خوله نوی لوست لولي او هغه څه چې پرې نه پوهیږي.، پوښتنه کوي.<br>– په توره دړه د لوست مهمو ټکوته ځیرکیدل.<br>– د درس تشریح کولوته غوږ نیول.<br>زده کوونکي ځیروي او هغه څه چې ستونزمن وي، پوښتنه یې کوي.<br>هر ډله د اروپا د نفوسو دځای پر ځای کیدنې په هکله بحث کوي او پایلې ټولګیوالوته بیانوي.<br>د لوست ورستنیو پوښتنو ته ځوابونه وایي. | ● د پیلوونکې مرحلې وروسته د هڅوونکي پوښتنو طرح کول.<br>● د سیاسي یا د نفوسو د نقشې د نفوسو د ګڼې ګونې په اړوند انځورونو څرګول.<br>● په چوپه خوله د نوي لوست د لوستلو او د ستونزمنو کلمو د ښنه کولو لارښوونه کوي.<br>● د ستونزمنو کلمو توضیح کوي.<br>● په توره دړه د لوست د مهمو ټکو لیکل، د نفوسو په زیاتوالي کې د مختلفو عواملو رول، لکه د علم پرمختګ، جغرافیوي عوامل او صنعتي عوامل تشریح شي. جغرافیوي عوامل لکه ډیر سیندونه، په معتدله منطقه کې موقعیت، ښه اقلیم، شنې سمسوره سیمې او انساني عوامل لکه پر مختللې کرنه او صنایع هم توضیح شي.<br>● د اروپا د نفوسوځای پرځای کیدنې د طریقې تشریح کول.<br>● په اروپا کې د نفوسو دودې د لږوالي علت (مهاجرتونه، د کورنیو علاقه مندی د نفوسو له کنترول سره او اسوده ګي) تشریح کول.<br>● ټولګي په مناسبو ډلو ویشل او هرې ډلي ته مناسب فعالیت ورکول.<br>● په ډله ییز فعالیت نظارت کول.<br>● د ډله ییز فعالیت پایلې له خپلو معلوماتو سره جمع بندي کول.<br>● د یادونې د تحکیم لپاره د لوست ورستنۍ پوښتنې طرح کول.<br>● له ټولګي څخه بهر فعالیت لارښوونه کول. |

۸– د هڅوونکو د پوښتنو ځوابونه

– د اروپا په لویه وچه کې د طبیعي ښو شرایطو په شتوالي، پراخو څړ ځایونو، له اوبو ډکو سیندونو، معتدل اقلیم، د علم او صنعت د پرمختګ په دلیلونو ډیر نفوس اوسیږي.

– ډیر نفوس د سیندونو په غاړه، د صنعتي مرکزونو په شا و خوا او په کرنیزو سیمو کې استوګنه کوي.

د لوست وروستنۍ پوښتنو ته ځوابونه

۱– سم

۲– ناسم

۳– سم

**۹– د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

په اروپا کې د نفوسو ځای پر ځای کېدنه:

د بشري فعالیتونو او د ژوند کولو لپاره د نابرابرو سیمو لکه د اروپا شمالي سړې منطقې او د ځینو لوړو غرنیو سیمو پرته نوره ټوله اروپا تقریباً ډیر نفوس لري، دا علت سبب شوي دی.، چې د اروپا لویه وچه له لږ پراخوالي سره سره د نړۍ د نفوسو له ډکو لویو وچو څخه وي. د اروپا په صنعتي مرکزونو او کرنیزو سیمو کې ډیر ګڼ نفوس اوسیږي. او په ځینو سیمو کې لکه نابرابر اقلیمي شرایط او یاد کرنې لپاره نابرابري ځمکې، د ځمکې لاندې زیرمو لږ والی یا لوړ غرونه د دې سبب شوي چې هلته لږ نفوس و اوسیږي.

په اروپا کې ډیرې ګڼ نفوسه سیمې د تایمز، راین، د نیوب، پو، سن او د نیپر سنیدونو په شاوخواکې دي.

د دې سیندونو په شاوخواکې د نفوسو د ځای پر ځای کیدنې غوره دلیل د مالونود وړلو او راوړلو لپاره ددې سیندونو له لارې ازادو اوبوته لارې دي.

بهرنیو لیږدیدنو (مهاجرتونو) هم د اروپا د لویې وچې پر نفوسو اغیزه کړې ده. د ۱۵ میلادي پیړۍ جغرافیوي اکتشافات د نړۍ زیاترو سیموته د اروپائیانو د زیاتو مهاجرتونو سبب شول، اروپايي مهاجرین په ځانګړي ډول د امریکا په متحده ایالتونو، د لاتیني امریکا په هیوادونو، کاناډا، استرالیا او نوي زیلانډ کې ځای پر ځای شوي دي.

– داخلي لیږدیدنې هم د اروپا د لویې وچې پر نفوسو اغیزه منې دي. د مثال په توګه په لویدیځه اروپا کې دوه میلیونه مهاجر کارګران کار کوي، د مهاجرو کارګرانو د شمیر له پلوه د المان هیواد لومړی دی او تر المان څخه وروسته فرانسه، انګلیستان، سویس او اسکندینا وي هیوادونه واقع شوي دي.

د اروپا هغه هیوادونه چې د نفوسو د لږ والي ستونزه لري معمولاً د کورنیو د تشویقولو، د جوایزو او تحفو په ورکولو، د ژوند د وسایلو او دکار له پلوه د ځانګړو اسانتیاوو په برابرولو او د ماشومانو د پالنې له لارې غواړي چې کورنۍ د نفوسو زیاتوالي ته تشویق کړي.

## د لسم لوست د تدریس د لارښود پلان

د تدریس وخت: دوه درسي ساعتونه

| سرلیکونه | د مطلبونوتشریح | |
|---|---|---|
| ۱– د درس موضوع | د اروپا د نژادونو اوژبو په هکله څه پوهیږئ؟ | |
| ۲– د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنيتي) موخې | زده کوونکي باید د درس په پای کې لاندې موخوته ورسیږي.<br>هراړخیزه موخه<br>د اروپا د خلکو د نژادونو او ژبو له ډولونو سره آشنا شي.<br>جزيي موخې<br>– د اروپا د خلکو نژادونه او ژبې تشریح کړي.<br>– د اروپا د خلکو نژادونو او ژبو نومونه واخلي.<br>– د نقشې پرمخ د اروپا د نژادونو ویش وښيي.<br>– د اروپا د ژبو نومونه واخلي | |
| ۳– د زده کړې د لاروچارو (میتودونو) وړاندیزونه | تشریح کول، لوستل، توضیح کول، پوښتنې او ځوابونه، عملي کار او ډلـه ییز فعالیت. | |
| ۴– د زده کړې مرستندویه توکي. | د اروپا د لویې وچې د نژادونو او ژبو نقشه، د مختلفو نژادونو انځورونـه، تـوره دړه، تباشیر د لوست کتاب د ښوونکي د لارښو د کتاب. | |
| ۵– ارزونه | شفاهي، لیکلي او عملي کار | |
| ٦– په ټولګي کې د درس ورکولو فعالیتونه | پیلوونکي فعالیتونه: ټولګي ته په مروجه طریقه ننوتل (سـلام او روغبـر کول) د ټولګي تنظیمول، حاضري اخیستل، د تېر لوست ارزونه او د زده کوونکو پواسطه د ټولګي څخه د بهر فعالیت وړاندې کول.<br>هڅوونکې فعالیتونه: په توره دړه د سرلیک لیکل او د ټولګي مـخ تـه د اروپا د نژادونو د ویش د نقشې ځړول.<br>هڅوونکې پوښتنه، ایا پوهیږئ چې د اروپا خلک له کوم نژاد څخه دي؟ | ۵ دقیقې<br>۵ دقیقې |

| ۷- د ښوونکي درسي فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | وخت |
| --- | --- | --- |
| ● په پیل کې د زده کوونکو پام د نژادونو د ویش نقشې او د لوست د کتاب انځورونو ته راواړوئ. | | ۳۵ دقیقې |
| ● له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړئ چې په اروپا کې کوم نژادونه شته؟ | د پوښتنې ځواب وایې | |
| ● د اروپا د ژبو اصلي څانګې کومې دي؟ | د پوښتنې ځواب وایې | |
| ● د زده کوونکي ځوابونه له خپلو معلوماتو سره راغونډ وي. | | |
| ● په چوپه خوله د نوي لوست لوستل او د ستونزمنو کلمو په نښه کولو لارښوونه کوي. | نوی لوست په چوپه خوله لولي او د ستونزمنو کلمو پوښتنه کوي. | |
| ● ستونزمنې کلمې توضیح کوي. | | |
| ● د لوست مهم ټکي په توره دړه لیکي. | په ډلو کې تنظیم کېږي او په ټاکلي موضوع په خپل منځ کې بحث کوي او پایلې یې ټولګیوالوته بیانوي. | |
| ● لوست تشریح کوي. | | |
| ● ټولګي په ډلوویشي چې د ژبو او نژادونو په هکله په خپل منځ کې بحث وکړي. | | |
| ● د زده کوونکو د پوهې د ارزونې لپاره د لوست ورستنی پوښتنې طرح کوي. | د پښتنو ځوانه وایې | |
| ● له ټولګي څخه بهر فعالیت لار ښوونه کوي | | |

**۸- د هځوونکي پوښتنې ځواب:**

د اروپا زیاتره خلک سپین پوستکي دي، سپین پوستکي په دریو ډلو ویشل شوي دي، سویلي قومونه، جرمني او سلاو.

**د متن وروستنیو پوښتنو ځوابونه**

۱- اروپایان له سپین نژاد څخه دي.

۲- د اروپا سویلي قومونه غنم رنګه دي.

۳- سلاویان زیاتره په ختیځه اروپا کې ژوند کوي او له چکیانو، سلواکیانو، صربیانو، کرواتیانو او روسانو څخه عبارت دی.

۴- د اروپا د ژبو اصلي څانګې عبارت له جرمني، لاتیني او سلاوي څخه دي.

**۹– د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

**د اروپا نژادونه**

د اروپا نژادونه په عمومي توګه په دوه برخو ویشل کېږي سپین پوستکي او ژیړ پوستکي.

د اروپا خلک زیاتره سپین پوستکي دي او سپین پوستکي هم دوه ډوله (غنم رنګه او خرمایي رنګه) دي.

غنم رنګه سپین پوستکي په څلورو ډلو ویشل کیږی په سویلي او منځنۍ اروپا کې استوګنه کوي.

– اسیبري څانګه چې د بلنار، کرسي، ساردني، سیسل په ټاپوګانو اود ایتالیا په هیوادونو کې لیدل کېږي. د دې نژاد ځانګړتیاوې لنډ قد (۱، ۶۲ متره) اوږد سر، تور ویښتان، تورې سترګې، غنم رنګه پوستکې او مستقیمه پزه ده.

– سویلي یا ساحلې څانګه چې د مدیترانې او د اطلس اوقیانوس د وچې په غاړو کې تر ۲۵۰ کیلومترو پورې لیدل کېږي د دې څانګې د خلکو د قدلوړوالی له (۱، ۶۶) متره څخه زیات دی، سربې لږ اوږد، د سترګو او وېښتو رنګ یې تقریباً تور دی.

پاسکیان هم د دې څانګې څخه دي.

– دا دریا تیک څانګه چې د دیناریک په لوړو کې استوګنه کوي (کرواتي او سر بی)

– سپن ته ورته څانګه، دا څانګه په اسپانیه، پرتګال، دایتالیې په سویل او یونان کې استوګنه کوي.

د اروپا ژبې: د اروپا زیاتره خلک په اندو اروپایي ژبو خبرې کوي او په درې برخو ویشل کېږي.

الف: د رومن ژبه د روم او یونان له پخوانیو ژبو څخه رابیله شوې او په هغو سیمو کې چې دهغو د تسلط لاندې دي خبرې کېږي.

ب: ژرمن ژبه چې په څوکو چنیو څانګو ویشل کېږي، د المان، اتریش، هنګري، ترانسلواني، پولیندي او روسیې د والګاتر سیند پورې د خلکو ژبه ده. دا ژبه په دوه محلي لهجو ویشل شوې ده. د آلمان د لوړو سیمو د اوسیدونکو ژبه سیمه ییزه ژبه ده.اوبله د آلمان د ټیټو سیمو د اوسیدونکو ژبه په ۶ م پیړۍ کې د انګلوساکسون د خلکو پواسطه انګلیستان ته وړل شوې او له فرانسوي تورو سره ګډه شوي ده.داسکندیناوي (دنمارک، ناروې او سویدن) ژبې هم د ژرمن د ژبې څانګې دي.

سلاوي ژبه: سیمه ییزې زیاتې لهجې لري چې له ټولو مهمه یې روسي ژبه ده او په درې برخو ویشل شوې ده زیاتره د هنګري، چک، سلواک او نور خلک په دې ژبه خبرې کوي.

## د یوولسم لوست د تدریس د لارښود پلان

د تدریس وخت: یو درسي ساعت

| سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱– د درس موضوع | د اروپا د دین او مذهب په هکله څه پوهیږئ؟ | |
| ۲–د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې | زده کوونکي باید د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسیږي.<br>هراړخیزه موخه<br>د اروپا د خلکو له دین او مذهب سره اشنا کیدل.<br>جزیې موخې<br>– د کاتولیک د مذهب په اړوند معلومات پیدا کول.<br>– د پروتستان د مذهب په اړوند معلومات پیدا کول.<br>– د ارتودوکس د مذهب په اړوند معلومات پیدا کول.<br>– د نقشې پر مخ د اروپا د مسلمانو هیوادونو ښوودل. | |
| ۳– د درس ورکولو لارو چارو (میتودونو) وړاندیزونه | تشریح کول، لوستل، توضیح کول، ډله ییز بحث، پوښتنې او ځوابونه او عملی کار | |
| ۴– د درس ورکولو مرستندویه توکي | په اروپا کې د مذهبونو د ویش نقشه، د مذهبي ابادیو انځورونه، توره دړه، تباشیر، د لوست کتاب او ښوونکی د لارښود کتاب | |
| ۵– ارزونه | شفاهي لیکلي او عملي کار | |
| ۶– په ټولګي کې د درس ورکولو فعالیتونه | پیلوونکي فعالیتونه: ټولګي ته په مروجه طریقه ننوتل (سلام اوروغبړ کول)، د ټولګي تنظیمول، د تیر لوست ارزونه، د زده کونکو پواسطه له ټولګي څخه د بهر فعالیت وړاندې کول.<br>هڅوونکي فعالیت: په توره دړه د سرلیک لیکل، د ټولګي مخ ته د اروپا د مذهبونو د ویش نقشې ځړول، د اروپا د مختلفو مذهبي ځایونو د انځورنو ښودل.<br>هڅوونکې پوښتنه: ایاد اروپا د دینونو په هکله معلومات لرئ؟ | ۵ دقیقې<br><br>۵ دقیقې |

| وخت | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | ۷– د ښوونکي درسي فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) |
| --- | --- | --- |
| ۳۵ دقیقې | – نقشې ته ځیر کېږي.<br>– د پوښتنې ځواب وایې.<br><br>– په چوپه خوله نوی لوست لولي او هغه څه چې نه پوهیږي، له ښوونکي څخه پوښتنه کوي<br>تشریح ته ځیر وي د ستونزمنو کلمو پوښتنه کوي<br><br>زده کوونکي په ډلو ویشل کېږي او هر ډله د نقشې پرمخ د مختلفو مذهبونو ساحې معلوموي او په نښه کوي.<br><br>– ځوابونه ورکوي | ● په پیل کې په توره دړه دسرلیک لیکل، او د اروپا د مذهبونو نقشې او د کتاب څینې انځورونوته د زده کوونکو پام را ړول. او هڅوونکې پوښتنې طرح کول.<br>● د زده کوونکو د نظرونو جمع بندي کول.<br>● په چوپې خولې د نوي لوست لوستل او د ستونزمنو کلمو د پوښتنو کولو لارښوونه.<br>● نوی لوست تشریح کوي او په اروپا کې مروج مذهبونه د ګراف په بڼه د تورې دړې پرمخ لیکي. د مسلمانانو نفوذ ته په دې قاره کې اشاره کوي، له زده کوونکو څخه غواړي هغه هیوادونه چې په هغو کې مسلمانان ژوند کوي د نقشې پرمخ وښیي.<br>● زده کونکي په ډلو ویشي چې د دینونو پر نقشې عملي کار وکړي.<br>● له ډله ییز کار څخه څارنه او لارښوونه کوي.<br>● د پوهې د ارزونې لپاره د لوست له ورستنیو پوښتنو څخه ګټه اخلي.<br>● د ټولګي څخه د بهر فعالیت لارښوونه کوي |

**د لوست د هڅوونکو او ورستنیو پوښتنو ځوابونه:**

۱– د عیسوي دین څانګې له کاتولیک، پروتستانت او ارتودوکس څخه عبارت دي.

۲– د کاتولیک مذهب زیاتره په سویډن، ناروې، دنمارک، انګلیستان، هالیند، المان، اتریش او د سویس د هیواد په یوه برخه کې رواج لري.

۳– پروتستانت، مارتین لوتر په نوم د یو الماني پخواني روحاني د تعالیمو پیروي کوي.

۴– د ارتودوکس مذهب زیاتره په روسیې، روماني، یونان او بلغاریې په هیوادونو کې رواج لري.

۵– مسلمانان زیاتره د بالکان په ټاپووزمه په البانیې، بوسني هرزګوني، بلغاریا او اروپایې ترکیې کې ژوند کوي.

**۹- د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

**په اروپا کې مذهبي څانگې**

کاتولیک: د کاتولیکو د کلیسا په سرکې پاپ (پلار په نوم) قرارلري چې د اوسید نې ځای یې د واتیکان په ښارکې دی، د کاتولیکانو په عقیده پاپ له هر ډول اشتباه او خطا څخه پاک دی. د کاتولیکانو په کلیسا کې د دین لارښوونه مذهبي روحانیون په غاړه لري، او د کلیسا کارکوونکي باید واده ونکړي.

پروتستانت: د پاپ په دستگاه کې دانحطاط لومړنی علت د ۱۶ م پیړۍ په لومړیو کې د یوه الماني کشیش مارتین لوتر په اعتراض او مخالفت پیل شو.

او د پاپ پرته د مسیحیت اساس ایښودونکی شو، مارتین لوتر د جنت پېرل او پلورل او د گناهونو ښښنه د مسیحي مشرانو په شفاعت باطله وگڼله اوعقیده یې درلوده چې د انسان د خلاصولو لپاره فقط ایمان کافي دی.

ارتودوکس: هغه مسیحیان دي چې زرکاله پخوا ورو ورو دروم دکاتولیک کلیسا څخه لېرې شول، د دې دواړو کلیسا و ترمنځ د اختلاف مهمه موضوع چې ارتودوکس پیروان روح القدس تنها ناشی د پلار څخه گڼی خود کاتولیک د عقیدې پیروان روح القدس منحیث د پلار څخه دی. د یونان، روسیې، صربستان او رومانیې د خلکو کلیسا و خپلواکې تر لاسه کړه. چې د روم د پاپ سره اړیکې نه لري دارتووکس د کلیسا کارکوونکي د واده په کولو کې خپلواکه دي.

د اروپا په لویه وچه کې د مسیحانو سربیره مسلمانان هم په تیت پرک ډول استوگنه لري، په اروپا کې د مسلمانانو داستوگنې ښه ځای د البانیې هیواد دی. مسلمانان د بالکانو د ټاپووزمې په زیاترو هیوادونو کې لکه بوسنې، هرزه گوني، بلغاریې او اروپایي ترکیې کې هم استوگنه کوې. په دې هیوادونو کې پخواني له برم ډک جوماتونه لاتر اوسه هم شته دي.

# د دولسم لوست د تدریس د لارښود پلان

د تدرس وخت: دوه درسي ساعتونه

| سرلیکونه | د مطلبونو تشریح | |
|---|---|---|
| ۱– د درس موضوع | د اروپا د اقتصادي جغرافيې په هکله څه پوهیږئ؟ | |
| ۲– د زده کړې (پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي) موخې | زده کوونکي باید د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسیږي.<br>هراړخیزه موخه:<br>د اروپا د لويې وچې له اقتصادي جغرافيې سره آشنا شي.<br>جزيې موخې:<br>– د اروپا د ځمکې لاندې زیرمو سره آشناشي.<br>– د هېواد له باندي څخه صنعتي اومو توکو د راوړلو (واردولو) علتونه بيان کړي.<br>– د اروپا دکرنې او مالدارۍ د پراختیا او ودې له اغیز منو عواملو سره آشنا شي.<br>– د کب نیولو، کرنې او مالدارۍ په برخو کې د څو مهمو اروپايي هیوادونو نومونه واخلي.<br>– د نقشې پرمخ د اروپا صنعتي هیوادونه وښيي.<br>– د اروپا د مهمو کرنیزو سیمو پیژندل. | |
| ۳– د زده کړې دلارو چارو (میتودونو) وړاندیزونه | تشریح کول، لوستل، توضیح کول ډله ییز بحث، پوښتنې او ځوابونه او عملي کار. | |
| ۴– د زده کړې مرستندوی توکي | د اروپا اقتصادي نقشه، په اروپا کې د پر مختللې کرنې انځورونه، دکتاب نقشې او انځورونه د ښوونکي د لارښو د کتاب، توره دړه او تباشیر. | |
| ۵– ارزونه | شفاهي، ليکلي او عملي کار | |
| ۶– په ټولګي کې د درس ورکولو فعالیتونه | پیلوونکي فعالیتونه: ټولګي ته په مروجه طریقه ننوتل (سلام اوروغبر کول) د ټولګي تنظیم، حاضري اخیستل، د تیر لوست ارزونه، د زده کوونکو پواسطه، له ټولګي څخه د بهر فعالیت وړاندې کول. | ۵ دقیقې |
| | هڅوونکي فعالیتونه: په توره دړه د سرلیک لیکل، د ټولګي مخ ته د اروپا د اقتصادي نقشې او د کرنې د محصولاتو او د پر مختللې مالدارۍ انځورونو ځړول.(د امکان په صورت کې)<br>په پیل کې له یوه زده کوونکې څخه وغواړئ د اروپا د کرنې شرایط او امکانات په توره دړه ولیکي، کرنیز مناسبات، حاصل خیزې ځمکې، پوره اوربښت او میکانیزه طریقه،<br>د مالدارۍ فعالیت: پریمانه واښه د حیواناتو د روزنې پرمختللي و سایل.<br>هڅوونکي پوښتنه، ولې د اروپا اقتصاد پرمختللی دی؟ | ۵ دقیقې |

| وخت | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | ۷- د ښوونکي درسي فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) |
| --- | --- | --- |
| ۳۵ دقیقې | - پوښتنې ته ځواب ورکوي.<br>- د لوست د کتاب انځورونو او نقشوته ځیر کېږي.<br>- نوی لوست په چوپه خوله لولي او هغه څه چې پرې نه پوهیږي پوښتنه یې کوي.<br><br><br>د نوي لوست تشریح ته ځیروي.<br>د لوست د اساسي ټکو پوښتنه کوي.<br><br><br><br>په ډلو کې تنظیم کېږي، او په ورکړ شوې موضوع بحث کوي او پایلې یې ټولګیوالوته بیانوي.<br><br>د پوښتنو ځوابونه وایي. | ● په توره دړه د سرلیک لیکل او هڅوونکي پوښتنې طرحه کول.<br>● په چوپه خوله د نوي لوست د لوستلو او د ستونزمنو کلمو پـــه نښه کول.<br>● پوښتنو ته ځوابونه وایي.<br>● د نوي لوست اساسي مهم ټکي په توره دړه لیکي.<br>● زده کوونکو ته تشریح کوي چې په اروپا کې د ځمکې لاندې زیرمې لږې دي او پخوابه یې د دغوزیرمو د لاسته راوړلو لپـــاره نور هیوادونه استثمارول.<br>● د نقشې پرمخ د اروپا مهم صنعتي هیوادونه وربښیي.<br>● پوښتنو ته ځوابونه وایي.<br>● ټولګی په ډلو ویشي او هرې ډلې ته د بحث کولو بیله موضوع ور په ګوته کوي.<br>● د ډلو څارنه او لارښوونه کوي.<br>● د ډله ییز فعالیت پایلې د خپلو معلوماتو له مخې راټولوي.<br>● د زده کوونکو د پوهې د ارزونې لپـــاره د لوســـت ورســـتنۍ پوښتنې طرح کوي.<br>● له ټولګي څخه د بهر فعالیت لار ښوونه کوي. |

**۸- د لوست د هڅوونکو او ورستنیو پوښتنو ځوابونه:**

۱- د اروپا لویه وچه د معتدلې هوا او پوره اوربښت د لرلو په سبب کرنې او مالدارۍ ته برابره ده؛ کرنه او مالدراي یې پـــه علمي طریقو سرته رسیږي نو ځکه یې اقتصاد پر مختللی دی.

۲- المان، انګلیستان او فرانسه

۳- د مدیترانې د سمندرګي په شاوخوا، د اروپا لویدیځې برخې او د اروپا ختیځې برخې.

۴- د ناروې او ایسلند هیوادونه.

۵- د نړۍ د نور هیوادونو کاني اوموتوکو ته اړدي.

**۹- د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

**د اروپا اقتصادي جغرافيه:**

اوس د اروپا د ټول پراخوالي په سلوکې ۳۰ کرنې ته ځانګړې شوی او په سلوکې ۲۰ يې چمنونو او وښو لرونکو ځمکـــو او په سلوکې ۳ يې ځنګلونو نيولې ده، په اروپا کې د کرنې د محصولاتو توليد لوړ دی، خو کچه يې له يوه هېواد څخــه بل هېواد ته توپيرکوي د مثال په توګه په هالند کې د کرنې محصولات د پرتګال په پرتله څلور برابره ډېر دی، دليل يـــې د آب او هوا توپير او د کرنې د مختلفو لارو چارو عملي کول دي.

اروپا او د مديترانې د سمندرګي حوزه د نړۍ دګرځندويانو لپاره يوه ډېره مهمه سيمه ده، چې هرکال په ملياردونو ډالـــره د ګرځندوی (توريزم) له لارې د دې منطقې د هيوادونو نصيب کېږي. د دې سيمې ښه آب و هوا د تفريحـــي ګرځنـــدويانو لپاره د راتلو مهم علت ګڼل کېږي. د اوړي په موسم کې د مديترانې لمريزې غاړې او معتدله هوا د ډول ډول ساعت تيرۍ او سپورتونو لپاره لکه لامبو وهل، تنس کول، د اسونو سورلۍ او موټرونو ځغلولو د زياتوالی سبب کيـــږي. ســـينماګانې، د پوستې او نقاشۍ نندارتونونه، د موسيقۍ جشنوارې، اثارو، ښارونو، هنري موزيمونو لکه، د لنـــدن او پـــاريس موزيمونـــه، پخوانۍ تاريخي ماڼۍ په ځانګړې ډول په اوړي کې دټولې نړۍ د زيات شمېر سيلانيانو او نړۍ ګرځيـــدونکو پـــام ځانتـــه راګرځوي.

د اتريش او سويس هيوادونو دالپ په غرونوکې د ژمنيو سپورتونو د ښو خدماتي امکاناتو د برابرولو له مخې په اروپا کـــې د ژمنی ګرځندوينې مهم مرکزونه شميرل کيږي.

**د کبانو د ښکار صنعت:** د کبانو د ښکار پر صنعت په عمومي توګه څو ډوله لااملونه اغيزه لري د هغو له ډلې څخه دوړلو اوراوړلو وسايل، کنګل کولو سامان آلات، دې صنعت ته او هغه شمير خلکو ته چې د کبانو په ښـــکارکولو بوخـــت دي سازمان ورکول او د کبانو د غوښو قيمت دی.

موټور (ماشين) لرونکې وړې بيړۍ (قايق) او د کبانو ښکاري بيړيو ډولونه د کبانو د ښکار د فوق العـــاده چټکتيـــا ســـبب شوي، په دې ورستيو کلنو کې د کبانو ښکارکول د لويو شرکتونو په لاس کې دي چې ډيری بيړۍ لري.

## د دیارلسم لوست د تدریس د لاربنود پلان

د تدریس وخت: دوه درسي ساعتونه

| سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱- د درس موضوع | د اروپا د کانونو او صنایعو په هکله څه پوهیږئ؟ | |
| ۲- د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې | زده کوونکي باید د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسیږي.<br>هراړخیزه موخه<br>د اروپا د لویې وچې له کانونو او صنایعو سره آشنا کیدل.<br>جزیې موخې.<br>- د اروپا کانونو نومونه واخلي.<br>- د اروپا د صنایعو له ډولونو سره آشنا شي.<br>- د اروپا صنعتي هیوادونه په نقشه کې وښیي. | |
| ۳- د زده کړې د لاروچارو (میتودونو) وړاندیزونه | توضیحي، تشریح، لوستل، ډله ییز بحث، پوښتنې او ځوابونه. | |
| ۴- د زده کړې مرستندویه توکي | د اروپا اقتصادي نقشه، د صنعتي محصولاتو، کارخانو او ګرځندوی سیمو، انځورونه، د کتاب نقشې او انځورونه، توره دړه او تباشیر | |
| ۵- ارزونه | شفاهي، لیکلي او عملي | |
| ۶- په ټولګي کې د درس ورکولو فعالیتونه. | پیلوونکي فعالیتونه: په مروجه طریقه ټولګي ته ننوتل (سلام اوروغبړ کول) د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل، د تیر لوست ارزونه او د زده کوونکو پواسطه له ټولګي څخه د بهر فعالیت وړاندې کول.<br>هڅوونکي فعالیت: په توره دړه د سرلیک لیکل، د ټولګي و مخ ته د اروپا اقتصادي نقشه ځړول، د کانونو او د اروپا د ډول ډول صنایعو انځورونو ځړول. (د امکان په صورت کې)<br>هڅوونکې پوښتنه: ولې اروپا د صنعتي اوموتوکو واردونکې ده؟ | ۵ دقیقې<br><br>۵ دقیقې |

| ۷- د ښوونکي درسي فعالیتونه ( د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| په توره دړه د سرلیک لیکل، د نوي او پخواني لوست ترمنځ د اړیکو ټینګول او هڅوونکې پوښتنه کول.<br>● له زده کوونکو څخه وغواړئ چې لوست په چوپه خوله ولولي او ستونزمن کلیمات په نښه کړي.<br>● ستونزمن اصطلاحات توضیح کوي.<br>● د نوي لوست مهم ټکي د لاسي صنایعو او د درنو صنایعو د محصولاتو نومونه په توره دړه لیکي.<br>● د اروپا کانونه او صنعتي سیمې او هغه ښارونه چې توریستکي سیمې ولري. د نقشې پرمخ وښيي، د توریزم (ګرځندوي) رول د اقتصاد په پر اختیا کې بیان کړي.<br>● ټولګی په ډلوو ویشي او د بحث موضوع ورته ځانګړي کوي.<br>● د فعالیت په ترځ کی نظارت او لارښوونه وکړي.<br>● د فعالت پایلې د خپلو معلوماتو له مخې راغونډې او خلاصه کړي.<br>● د پوهې د ارزونې لپاره د لوست وروستنۍ پوښتني طرح کړي.<br>● له ټولګي څخه د بهر فعالیت ارزونه وکړي. | د پوښتنې ځواب وايي<br><br>په چوپه خوله نوی لوست لولي او هغه څه چې نه پوهیږي پوښتنه یې کوي.<br><br>د ښوونکي توضیحاتوته غوږ نیسي.<br><br>په ډلو ویشل کېږي او په توریزم، کانونو او صنایعو باندې بحث کوي.<br><br>د پوښتنو ځوابونه وايي | ۳۵ دقیقې |

۸- د هڅوونکې پوښتنې ځواب: د اروپا تر ځمکې لاندې زیرمې لږې دي او اروپا د خپلو صنایعو د پرمختګ لپاره اوموتوکوته اړتیا لري، نو په دې سبب یې د نورو لویو وچو هیوادونه یې تر استعمار لاندې راوستي و.

- د لوست د ورستنیو پوښتنو ځوابونه

۱- د اروپا لاسي یا سپکې صنایع، ښیښنه جوړونې، چاقو جوړونې، تورې جوړونې، چیني لوښو جوړونې او ټوټو او بدل تشکیلوي.

۲- د اروپا صنعتي کارخانې زیاتره د کانونو تر څنګ جوړې شوې دي.

۳- د اروپا درندې صنایع عبارت دي د فلزاتو ویلی کولو، د برقي سامان الاتو جوړولو، د بیړیو، موټرونو او الوتکو جوړلو او نورو څخه.

**۹- د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

اروپايي هيوادونه د ډبروسکرو او د اوسپنو د ډبرو له پلوه بډاى دي او د دې د وارو کافي شتون په اروپا کـې د صـنعتي انقلاب مهم عامل ګڼل کېږي د مثال په توګه انګليستان هغه هيواد دى چې ددې دوارو کاني سيمو څخه به يې يــو د بــل ترڅنګه زياته ګټه اخيستله، د اوسپنې ډبرې د اروپا په زياترو سيمو کې پيدا کېږي، خو دوه توليدي سيمې زيــات ارزښــت لري د فرانسي په ختيځ کی د لورن حوزه چې ترلوکز مبورګ پورى غزيدلي ده. د المان د سارد ډبر سکرو د حــوزې تــر څنګ موقعيت لري او د سويدن د شمال حوزې د اوسپنو د ډبرو کان چې له هغه ځاى څخه د اوسپنې ډبرې د بيړيو پوسيله د اروپا صنعتي سيمو ته وړل کېږي. په ۱۹۴۰م کال کې د ناروى په هيواد باندې د المان دير غل دليل يو هم د ډبرســکرو د وړنکو بيړيو د امنيت ساتل وو. ځکه هغه وخت د اوسپنو ډبرو د المان نظامي صنايعو لپاره اساسي ارزښت درلود.

په اروپا کې صنعتي انقلاب د دې هيوادونو لاسي صنايع له منځه يو وړل او فقط د ګوتو په شمير څو لاسي صنايع چــې لــه هغو څخه يادونه وشوه، لاتر اوسه په اروپا کې رواج لري. د ۱۹م پيړۍ را هسې اروپا د ډبر سکرو د زيرمو او د ښه حمل و نقل په سبب د نړۍ لويه صنعتي منطقه وه، په انګليستان کې درانه صنايع د د ډبرو سکرود کانونو ترڅنګ، د فرانسې پــه شمال کې، بلجيم او پولېند کې هم پر مختللي دي. د اوبو بريښنا د انرژۍ څخه د ګټې اخيستنې وروسته، د ســويدن پــه مرکز او د ايتاليا په شمال کې هم صنايع پرمخ لاړى. او لوي صنعتي ښارونه يې په خپل شاوخواکې منځته راوړل، همدارنګه فرانسې هم حومې منځته راوړى چې کارخانو را چاپير کړې وي په اروپا کې د سيندونو او سمندرګيو لنګر ځايونه او پنــاه ځايونه لاتر اوسه د صنايعو د منځته راتلو مهم مرکزونه شميرل کېږي.

## څوارلسم لوست د تدریس د لارښود پلان

د تدریس وخت: یو درسي ساعت

| سر لیکونه | د مطلبونو تشریح | |
|---|---|---|
| ۱- د زده کړې موضوع | د اروپا دلو یې وچې ترانسپورت. | |
| ۲- د زده کــړې ( پـــوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې | زده کوونکي باید د درس په پای کې لاندې موخوته ورسیږي.<br>هراړخیزه موخه:<br>د اروپا له ترانسپورت سره اشنایي.<br>جزیې موخې:<br>- ترانسپورت تعریف کړي.<br>- د اروپا د لویو لارو د پراختیا علتونه توضیح کړي.<br>- د اروپا د اوسپنو د لارو د پراختیا علتونه بیان کړي.<br>- د ترانسپورت اقتصادي ارزښت ووایي. | |
| ۳- د زده کــــــــــړې د لارو چارو(میتودونه) وړاندیزونه | تشریح کول، ډله ییز فعالیت، پوښتنې او ځوابونه، د نقشې پرمخ کار کول. | |
| ۴- د زده کړې مرستندوی توکي | د اروپا ترانسپورتي نقشه، درسي کتاب، تخته، تباشیر، ښوونکي د لار ښود کتاب. | |
| ۵- ارزونه | شفاهي، لیکلي، عملي کار او له ټولګي څخه بهر فعالیت. | |
| ٦- په ټـــولګي کـــې د درس د ورکولو فعالیتونه | پیلوونکي فعالیتونه: په مروجه ډول ټولګي ته ننوتل (سلام او روغبړ کول).<br>د ټولګي تنظیم، د حاضري اخیستل، د تیر لوست ارزونه او د زده کوونکو په واسطه له ټولګي څخه بهر فعالیت ټولګیوالوته وړاندې کول.<br>هڅوونکي فعالیتونه: په توره دړه باندې د سرلیک لیکل، د ټولګي و مخ تـــه د نقشې ځړول.<br>هڅوونکې پوښتنه: پخوانیو خلکو د سوداګریزو توکو او مسافرینو د وړلو او راوړلو لپاره له کومو وسیلو څخه ګټه اخیستله؟ | وخت<br>۵ دقیقې<br>۵ دقیقې |

| وخت | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | ۷- د ښوونکي درسي فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) |
|---|---|---|
| ۳۵ دقیقې | د تیرو ټولګیو د معلوماتو پربنسټ ترانسپورت تعریف کوي. | له هڅوونکي پوښتنې څخه وروسته بله پوښتنه طرح کوي.<br>● ترانسپورت تعریف کړئ.<br>● دزده کوونکو له نظریاتو وروسته ترانسپورت تعریف وي. |
| | لوست په چوپه خوله لولي او په هرڅه چې نه پوهیږي له ښوونکي څخه یې پوښتنه کوي. | ● د زده کوونکو څخه غواړي چې لوست په چوپه خوله ولولي او ستونزمن کلمات په نښه کړي.<br>● د زده کوونکو پوښتنو ته ځواب ورکوي.<br>● نورې پوښتنې کوي. |
| | ۱-هغه څه چې زده کوونکو د چوپې خولې له مطالعې څخه زده کړل ځواب ورکوي.<br>۲- د موټرو او لکمو تیف(ریل) ترانسپورت او نور.<br>۳- سویدن په هیوادکې هرو څلور تنوته یو موټر شته.<br>۴- د انګلیستان په هیواد کې.<br>۵- د مسافرینو، سوداګریزو توکو او صنعتي اومو موادو لپاره. | ۱- کوم ځواک د پخوا راهیسې په اروپا کې د لویو لارو د پراختیا سبب شوی دی؟<br>۲- په اروپا کې د وچې د ترانسپورتونو نومونه واخلئ؟<br>۳- په کوم اروپایې هیواد کې زیات تیز رفتار موټرونه شته ؟<br>● د زده کوونکو له نظریاتو وروسته موضوع تشریح کوي.<br>● بیا د اروپا د اوسپنو له کرښو په هکله پوښتنې کوي.<br>۴- په نړۍ کې لومړی ځل داوسپنود کرښو څخه په کوم هیواد کې ګټه واخیستل شوه؟<br>۵- د اوسپنو له کرښو څخه زیاتره د څه لپاره ګټه اخیستل کېږي. |
| | زده کوونکي په ډلوکې تنظیم کېږي د ښوونکي له لارښوونې سره سم فعالیت اجراء کوي. | ښوونکی دې درس راټول او تشریح کړي.<br>● د لویو لارو او د اوسپنو د لارو په هکله د ډله ییز فعالیت لارښوونه کوي.<br>● ډله ییز فعالیت پایلې راټولوي او د درس لنډیز زده کوونکوته وایي.<br>● د لوست د ارزونې په موخه د لوست د پای پوښتنې طرح کوي.<br>● له ټولګي څخه د بهر فعالیت لارښوونه کوي |

۸– د هڅوونکې پوښتنې ځواب: د حیواناتو، انسانانو او د اوبو له ترانسپورت څخه ګټه اخیستل کیده.
د درس د پای پوښتنو ځوابونه.
۱– ترانسپورت له یوځای څخه بل ځای ته د مسافرینو او سوداګریزو توکو وړل، راوړل دي.
۲– د لښکرو، جنګي مهماتو، مسافرینو او مالونو د انتقال لپاره ګټه اخیستل کیده.
۳– لومړی ځل ریل ګاډی د انګیستان دویلز په سیمه کې د موټرونو او مسافرینو د وړلو لپاره په کار واچول شو.
۴– د اوسپنی لومړنی لیکې د انګلیستان د استوکن او دولینګتون ښارونه سره ونښلول.
۵– د اوسپنو لارې د ځمکني ترانسپورت ډیرې چټکې لیکي دي، چې د لرې مسافرتونو، د سوداګریزو توکو، صنعتي اومو توکو اوسونګ موادو د وړلو لپاره ور څخه ګټه اخیستل کېږي.

۹– د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:

د اروپا ځمکنی ترانسپورت:

د اوسپنو لارې او د موټرونو سړکونه په ټوله اروپا او په ځانګړي ډول د اروپا په منځنۍ برخه کې د ټولې لویې وچې په پرتله ډیرې پرمخ تللې دې، داکرښې د غنې د تارونو په څیر د زرګونو کیلو مترو په واټن هرې خواته غزیدلي دي چې د داخلي اړیکو سربېره له ځو نورو هیوادونو څخه هم تیریږي او د اروپا د سراسري لارو دریځ یې غوره کړی دی. د مثال په توګه: د موټرو سړکونو او د اوسپنو لارو د پاریس ښار د فرانسي د هیواد پلازمینه په شمال لویدیځ کې د کلایس Calais له بندر سره نښلوی. اوروسته له هغه ځای څخه د مانیش د سمندرګي د اوبو لاندې تونل له لارې د انګلیستان د (دوور) Doover د بندر سره او له هغه ځای څخه د هغه هیواد نورو ښارونو ته غزیدلې دي.
دویمه د موټرو او اوسپنو لیکي له پاریس د ښار سویل ته د پرینی غرونو له ختیځ او لویدیځ برخو څخه د اسپانیې د هیواد پلازمینې مادرید او د پرتګال د هیواد پلازمیني لزبن ته رسیږي. او همدارنګه د پاریس څخه ختیځ ته برلین، وارسا، مسکو ښارونه او د هغه ښار څخه شمال لورته هلسنګي، استاکهلم او اسلو سره نښلوي.
له شمال څخه سویل ته د مسکو ښار د کیف، ادیسه، بخارست، بلګراد، صوفیه او استانبول ښارونه سره نښلوي او همدارنګه د المان همبورګ او فرانکفورت ښارونه د ژینو (سویس)، میلان (ایتالیا)، او اتن د یونان له پلازمینې سره نښلوي.

## د پنځلسم لوست د تدریس د لارښود پلان

د تدریس وخت: یو درسي ساعت

| سرلیکونه | د مطلبونو تشریح | |
|---|---|---|
| ۱– د زده کړې موضوع | د اروپا يې وچې د اوبو او هوايي ترانسپورت کرښې | |
| ۲– د زده کړې (پـوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي) موخې | له زده کوونکو څخه هيله کېږي چې د درس په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي.<br>هراړخيزه موخه:<br>د اروپا د لويې وچې له اوبو او هوايي تګ اوراتګ له سيستم سره اشنايي.<br>جزيې موخې:<br>– د لومړنۍ هوايي الوتنې څرنګوالی توضيح کړي.<br>– د هوايي ترانسپورت ارزښت تشريح کړي.<br>– د اروپا د بيړيو چلولو وړ سيندونه معرفي کړي.<br>– د اوبو د ترانسپورت اقتصادي ارزښت توضيح کړي.<br>– د اروپا په لويه وچه کې د پايپ لين (د نفتو او طبيعي ګاز وړلو) ترانسپورت تـشريح کړي.<br>– د اروپا په لويه وچه کې د اوبو او هوايي ترانسپورت سره پرتله کړي. | |
| ۳– د زده کړې د لاروچارو (ميتودونو) وړاندیزونه | تشريح کول، پوښتنې او ځوابونه او ډله ييز فعاليت | |
| ۴– د زده کړې مرســتندويه توکي | د اروپا نقشه، د لوست کتاب او توره دړه. | |
| ۵– ارزونه | شفاهي، ليکلي او عملي کار | |
| ۶– په ټولګي کــې د درس ورکولو فعاليتونه | پيلوونکي فعاليتونه: په مروجه طريقه ټولګي ته ننوتل (سلام اوروغبــړ کــول) د ټولګي تنظيم، د حاضرۍ اخيستل، د تير لوست ارزونـــه، د زده کوونکـــو پـــه واسطه له ټولګي څخه د بهر فعاليت ټولګيوالوته وړاندې کول.<br>هڅوونکي فعاليتونه: په توره دړه د سرليک ليکل، له الوتکو سره د هوايي ډګر د تصوير ښودل، د ټولګي مخ ته د اروپا د نقشې ځړول.<br>هڅوونکې پوښتنه: ايا پوهيږئ چې د انرژۍ د لګښت له مخې ډيــر مـــصرف کوونکی ترانسپورت کوم يو دی؟ | وخت<br>۵<br>دقيقې<br><br><br>۵<br>دقيقې |

| ۷- د ښوونکي درسي فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | وخت |
| --- | --- | --- |
| ● د زده کوونکو د هڅولو په موخه هڅوونکې پوښتنه طرح کوي چې د انرژۍ له پلوه ډېر لګښت کوونکی ترانسپورت کوم یو دی. | د تیروکلنو له لوستونو څخه په ګټې اخیستنې سره هوایي ترانسپورت معرفي کوي. | ۳۵ دقیقې |
| ● وروسته له زده کوونکو څخه غواړي چې په چوپه خوله نوي لوست ولولي او هغه څه چې پرې نه پوهیږي په نښه یې کړي. | لوست په چوپه خوله لولي او هر هغه څه چې نه پوهیږي له ښوونکي څخه پوښتنه کوي. | |
| ● د زده کوونکو پوښتنوته ځواب وایې.<br>● په اروپا کې د لومړنۍ الوتني او هوایي کرښو په هکله پوښتنه کوي. | - د متن څخه په ګټې اخیستنې پوښتنې ته ځواب وایي. | |
| ● له هوایي کرښو څخه په کومه موخه ګټه اخیستل کیږي؟<br>● د نړۍ د ډېر ارزانه ترانسپورت په هکله پوښتنه کوي؟<br>● د اروپا د بیړیو چلولو وړلوی سیندونه کوم دي؟<br>● د زده کوونکو د ځوابونو وروسته درس تشریح کوي.<br>● بیا پوښتنه کوي:<br>د پایپ لین ترانسپورت د کومو شیانو دوړلو لپاره استعمالیږی او څه ښه والی لري؟ | - د مسافرتونو او د باارزښته توکو د وړلو لپاره ګټه اخیستل کیږي.<br>- د اوبو ترانسپورت دی.<br>- د راین او دنیوب سندونه معرفي کوي.<br>- د نفتو او طبیعی ګاز د وړلو له پاره په کاریږي ښه والی یې دا دی چې اوبلن مواد پرته له ضایعاتو په ډېر لږ وخت کې انتقالیږی. | |
| ټولګی په څوډلو ویشي او هر ډله په یوې پوښتنې یوله بل سره بحث کوي. | زده کوونکي په ډلو کې تنظیم او په ټاکلې پوښتنې باندې بحث کوي او د بحث پایلې ټولګیوالوته وایې. | |
| ● د زده کوونکو د نظریاتو له جمع بندۍ وروسته د درس لنډیز وایي<br>● د پوهې د ارزونې په موخه د لوست ورستنۍ پوښتنې طرح کوي.<br>● له ټولګي څخه بهر فعالیت لارښوونه کوي. | | |

۸– د هڅوونکو پوښتنو ځوابونه: ډیر لګښت لرونکی ترانسپورت، هوایي ترانسپورت دی چې ډیر زیات نفت مصرفوي او د هوایي ډګرنو جوړښت هم ډیر لګښت لري.

ډیر ارزانه ترانسپورت د اوبو ترانسپورت دی چې ډیر لږ نفت مصرفوي او د اوبو ترانسپورتي کرښې هم ډیر لګښت نه غواړي او ډیر زیات سوداګریز توکي انتقالوي.

**د متن د پای د پوښتنو ځوابونه:**

۱– لومړنی هوایي لیکه د هالیند په هیواد کې د رایل – دچ – ایرلین Royal Dutch Airlines په نوم جوړه شوې وه.

۲– دمسافرینو او د هغو توکو د وړلو لپاره چې حجم یې لږ او ارزښت یې ډیر وي استعمالیږي.

۳– د نړۍ ډیر پخوانی ترانسپورت د اوبو ترانسپورت دی.

۴– په اروپا کې د بیړیو چلولو ډیر اوږد سیند د نیوب دی چې له څو هیوادونو څخه تیریږي.

۵– په اروپا کې د سیندونو او سمندرونو ډیر لوی بندر د هالیند د روتردم بندر دی.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات.**

**د اوبو ترانسپورت:**

د تمدنونو د منځته راتللو او د پرمختګ یو علت هم د ملتونو ترمنځ اړیکي دي. هغه لوی ښارونه چې د تاریخ په اوږدو کې منځته راغلي او شهرت یې موندلی و. د ځمکینو لارو، سیندونو، سمندرګیواو د سمندرونو په غاړو جوړ شوی و. کله چې به هغه لارې متروکې شوې او یا به یې امنیت خراب شو، نو د هغو ښارونو او د شاوخوا سیمو نوم او شهرت به هم ورسره پیکه کیده. اروپایي زیاتره سیندونه په طبیعي توګه د بیړیو چلولو وړ دي لکه د تایمز سیند چې د لندن له ښار څخه اوسن سیند د پاریس د ښار څخه تیریږي خو یو شمیر نور سیندونه د کانالونو په کیندلو د بیړیو چلولو وړګرځول شوي دي لکه د والګا– دون کانال Volga- Don- Canal په روسیه کې چې د ۱۰۰ کیلومترو په واټن تور سمندرګی د کسپین له سمندر سره نښلوي. د امستردم – راین کانال Amsterdam Rhine Canal چې ۷۲ کیلومتره اوږدوالي لري، د کیل کانال Keil Canal د بالتیک سمندرګي له شمال سمندرګي سره نښلوی چې د المان د هیواد په شمال کې د ۹۸ کیلومترو په اوږدوالی جوړ شوی دی.

د دنیوب سیند د اروپا د لویې وچې ډیر اوږد سیند دی او زیاتره له کرنیزو سیمو څخه تیریږي.د اوبه خور او کرنیز محصولاتو د وړلو او راوړلو لپاره ورڅخه کار اخیستل کېږي. خو د راین سیند د اروپا له صنعتي سیمو څخه تیریږي نو ځکه زیات شمیر بیړۍ ور څخه ګټه اخلي.

هغه سیندونه چې د بالتیک په سمندرګي کې تویيږي. په ژمي کې کنګل وي. د بوتنی او فنلند خلیجونه درې میاشتې کنګل وي. د بالتیک د سمندرګي اوبه د سیندونو د خوږو اوبو د تویدلو په سبب د سمندرونو د اوبو په پرتله لږه مالګه لري. او له همدې کبله په ژمي کې کنګل کېږي.

د اروپا سویلي سیندونه چې د مدیترانی په سمندرګي کې تویيږي، په غرنیو سیموکې د بهیدلو او د بارانونو د اورښت په سبب د اوبو نامنظم حجم لري؛ نو ځکه د بیړلو چلویو لپاره ورڅخه لږه ګټه اخیستله کېږي.

## د شپاړسم لوست د تدریس د لارښود پلان

**د تدریس وخت: یو درسي ساعت**

| سرلیکونه | د مطلبونو تشریح | |
|---|---|---|
| ۱- د زده کړې موضوع | د امریکا د لویې وچې جغرافیایي موقعیت | |
| ۲- د زده کـــړې (پـــوهنیزې مهارتي او ذهنیتي)موخې | زده کوونکي باید د درس په پای کې لاندې موخوته ورسیږي.<br>هر اړخیزه موخه:<br>- د امریکا د لویې وچې جغرافیایي موقعیت سره آشناشي.<br>جزیي موخې:<br>- د امریکا د لویې وچې د طول البلدي او عرض البلدي موقعیت وپېژنی.<br>- د امریکا د لویې وچې څلورخواوې توضیح کړي.<br>- د امریکا د لویې وچې جغرافیوي ویش تشریح کړي.<br>- د امریکا د لویې وچې درې غوره برخې معرفي کړي.<br>- د امریکا د لویې وچې پر نقشه باندې تمرین وکړي.<br>- د امریکا د لویې وچې پر سپینه نقشه باندې تمرین وکړي. | |
| ۳- د زده کړې د لاروچـــارو (میتودونو) وړاندیزونه | تشریح کول، پوښتنې او ځوابونه، لوستل او ډله ییز بحث | |
| ۴- د زده کـــړې مرســـتندوی توکي | د امریکا د لویې وچې نقشه، د امریکا بې لیکنې نقشه، د ځمکې کـــره، د لوســـت کتاب، توره دړه او تباشیر | |
| ۵- ارزونه | شفاهي، لیکلي او د ټولګي څخه بهر فعالیت | |
| ٦- په ټـــولګي کـــې د درس ورکولو فعالیتونه | پیلوونکي فعالیتونه: په مروجه طریقه ټولګي ته ننوتل، (سلام او رغبړ کول) دټولګي تنظیم، دحاضرۍ اخیستل، د تیر لوست ارزونه او د زده کوونکو پواسطه له ټولګي څخه د بهر فعالیت ټولګیوالو ته وړاندې کول.<br>هڅوونکي فعالیتونه: په توره دړه د سرلیک لیکل د ټولګي مخ ته د نقشې ځړول.<br>هڅوونکې پوښتنه: ولې د امریکا لویه وچه د نوې لویې وچې په نوم نومول شوې ده؟ | ۵دقیقې<br><br>۵دقیقې |

| ۷- د ښوونکي درسي فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| • له پیلوونکې مرحلې څخه وروسته لاربنوونه کوي چې په چوپه خوله زده کوونکي نوی لوست ولولي او ستونزمن کلمات په نښه کړي.<br>• د زده کوونکو پوښتنو ته ځواب وايي.<br>• د نقشې له مخې د امریکا د لویې وچې جغرافیوي موقعیت، څلور خواوې او ډیرې لیرې نقطې ورښيي او تشریح کوي.<br>• په توره دړه د امریکا درې غوره برخې، طول البلد او عرض البلد لیکي او د هغو په اړوند لازم توضیحات ورکوي<br>• زده کوونکي په ډلو ویشي چې د کتاب پر نقشې او جغرافیایي کرې تمرین وکړي.<br>• درس راټول کړئ او لنډیزیې و وايي.<br>• د ارزونې په موخه د لوست ورستنی پوښتنې طرح کوي.<br>• له ټولګي څخه د بهر فعالیت لاربنوونه کوي. | • په چوپه خوله نوی لوست لولي اوپر هرهغه څه چې نه پوهیږي له ښوونکي څخه پوښتنه کوي.<br>• زده کوونکی په ځير سره متوجه وي او پر هر هغه څه چې نه پوهیږي پوښتنه کوي.<br>• زده کوونکي په ډلوکې تنظیم کیږي او د کتاب پر نقشې او جغرافیوي کرې پر هغه څه چې لوستلي تمرین کوي او دخپل تمرین پایلې ټولګیوالوته ورښيي.<br>ځوابونه ورکوي. | ۳۵ دقیقې |

**۸- د هڅوونکې پوښتنې ځواب:**

- ځکه چې خلکو د ۱۴۹۲م کال د مخه د امریکا د لویې وچې په هکله معلومات نه درلودل.

- ددرس ورستنیو پوښتنو ځوابونه.

لاندې جملې بشپړې کړی.

**۱-د امریکا د لویې وچې پراخوالی ۴۲,۱ میلیون کیلومتر مربع او دګرینلند د ټاپو په ګډون ۴۳ میلیون کیلومتره مربع پراخوالی لري؟**

**۲- د دریکا آبناء**

**۳- الکاهل سمندر**

**۴- د اتلانتیک سمندر**

**۹- د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

**د امریکادلویې وچې ویش**

**الف شمالي امریکا:** د امریکا په دې برخه کې د ګرینلند ټاپو، کاناډا او د امریکا متحده ایالتونه پراته دي. د انګلوساکسون په نوم هم یادیږي.

د ګرینلند ټاپو د دنمارک د هیواد یوه برخه ګڼل کیږي او ځانګړې ستراتیژیکي ارزښت لري. ددې ټاپو فرهنګ مخلــوط دی ددې خاورې د اصلي اوسیدونکو سکیمو او هغه څه چې د ډنمارکیانو پواسطه راوړل شوي دي. د انګلیسانو لیږدیدنی (مهاجرتونه) د امریکا متحده ایالاتونو ته د ۱۷ م پیړۍ په پیل کې اوکانادا هیواد ته د ۱۸م پیړۍ په ورستیوکې پیل شــول، ورو ورو یې یو ډول انګلو ساکسون فرهنګ په امریکا کې منځته راوړی او په غیر انګلیسي فرهنګ باندې برلاسي شــول، چې ډیره مهمه برخه یې انګلیسي ژبه، آداب او رسمو نه رواجونه دي، فرانسویان د کانادا د هیواد په کیوبک ایالت کــې استوګنه کوي. د کانادا هیواد خپل یووالی د انګلیستان له هیواد سره ساتلي او لاتر اوسه د ګډو ګټو لرونکو هیوادونــو ( مشترک المنافع) یوه برخه ده او دانګلیس تاج او تخت ته وفادار هیواد دی.

ب، لاتین امریکا: د منځنۍ او سویلي امریکا برخې د لاتینې امریکا په نوم یادیږي. ددې سیمی نوم اود ژوند کړه وړه یې د لاتیني اروپاښکا رندویې کوي یعنی په ۱۸ هیوادوونو کې په اسپانوي ژبه، په برازیل کې په پرتګالي ژبه اود هایتي په هیــواد کې په فرانسوي ژبه خبرې کیږي. د کاتولیک مذهب چې د سویلي اروپا د خلکو مذهب دی د لاتینې امریکا د ټولو خلکو مذهبي عقیده هم ده او حتی په ځینو هیوادونو کې رسمي مذهب هم دی.

د لاتیني امریکا اوسنی فرهنګ د سروپوستکو، تورپوستکو(چې له افریقا څخه راوړل شوي) او لاتینې اروپا ګــډ فرهنــګ دی. د اتمدن د شمالي امریکا له تمدن څخه توپیر لري، چې لــه شــمال لویــدیځې اروپــا څخــه راوړل شــوي دي.

## د اولسم لوست د تدریس د لارښود پلان

**د تدریس وخت: یو درسي ساعت**

| سر لیکونه | د مطلبونو تشریح | |
|---|---|---|
| **۱– د زده کړې موضوع** | د امریکا د کشف په هکله څه پوهېږئ؟ | |
| **۲– د زده (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې** | زده کوونکي باید د درس په پای کې لاندې موخوته ورسیږي.<br>هر اړخیزه موخه.<br>د امریکا د لویې وچې د کشف له څرنګوالي سره اشنا شي.<br>جزیې موخې:<br>– د امریکا د لویې وچې د کشف له علتونو سره اشنا کیدل.<br>– د امریکا د لویې وچې کاشفین وپیژني.<br>– د امریکا د لویې وچې په نوم پوهیدل.<br>– د نړۍ د نقشې پرمخ د کاشفینو د سفر لوري پیدا کول.<br>– د نړۍ پر نقشه د امریکو سپوچي د سفر د لوري ترسیم کول. | |
| **۳– د زده کــړې لاروچـــارو (میتودونو) وړاندیزنه.** | تشریح کول، لوستل، پوښتنې او ځوابونه او ډله ییز بحث. | |
| **۴– د زده کــړې مرســتندویه توکي.** | د نړۍ نقشه، جغرافیایي کره، دکار نقشه، درسي کتاب، توره دړه او تباشیر | |
| **۵– ارزونه.** | شفاهي لیکلی او له ټولګي څخه بهر فعالیت | |
| **۶– په ټــولګي کــې د درس ورکولو فعالیتونه.** | پیلوونکي فعالیتونه: په مروجه طریقه ټولګي ته ننوتل (سلام ا ورغبړ کول) د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل، د تیرلوست ارزونــه او د زده کوونکــو لخوا له ټولګي څخه د بهر فعالیت وړاندې کول.<br><br>هڅوونکي فعالیتونه: په توره دړه د سرلیک لیکل، د ټولګي مخ ته د نقــشې ځړول.<br>هڅوونکې پوښتنه: آیا د امریکا د کشفونکي نوم پیژنئ؟ | وخت<br>۵ دقیقې<br>۵ دقیقې |

| وخت | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | ۷– د ښوونکي درسي فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) |
|---|---|---|
| ۳۵ دقیقې | په چوپه خوله نوی لوست لولي او له ښوونکي څخه د ستونزمنو کلمو پوښتنه کوي.<br><br>• زده کوونکي هغه څه چې پـرې نـه پـوهیږي پوښتنه یې کوي.<br><br>• زده کوونکي ځیروي او هغه څه چې پرې نـه پوهیږي پوښتنه یې کوي.<br><br>زده کوونکي په ډلوکې تنظیمیږي او پر ورکړشـوې پوښتنې بحث کوي او د بحث پـایلې ټولګیوالوتـه وړاندې کوي.<br><br>د پوښتنو ځوابونه وایي | • د پیلوونکو او هڅوونکو فعالیتونو وروسته په چوپه خوله د نوي درس لوستل اود ستونز منو کلمو په نښه کولو لارښوونه کوي.<br>• د زده کوونکو پوښتنو ته ځواب وایي<br>• د نړۍ د نقشې پر مخ د کرستف کولمب سفر لـه اسپانیا څخه تر امریکا پورې ورښیي او د سفر علـت او نتایج یې ورته توضیح کوي.<br>• د نقشې پر مخ د امریکو سپوچي سـفر د اسـپانیا څخه د برازیل تر جنوبي غاړو پورې ورښـیي او لازم تشریحات ورکوي.<br>• د امریکا د لوېې وچـې د نومولـو تاریخچـه دی تشریح کړي.<br>• زده کوونکي په ډلو ویشي او هر ډلې ته بیله پوښتنه ورکوي.<br><br>• د ډله‌ییز فعالیت پایلې د خپلو معلوماتو لـه مخـې راټولوي..<br>• د درس لنډیز بیانوي.<br>• د ارزونې په موخه د لوست له ورستنیو پوښتنو څخه ګټه اخلي.<br>• د ټولګي څخه د بهر فعالیت لارښوونه کوي. |

۸–هڅوونکې پوښتنې ځواب د امریکا د لوېې وچې کشف کوونکی کرستف کلمب دی.

• د لوست د ورستنیو پوښتنو ځوابونه

۱– د هند هیواد ته د سوداګریزو لارو کشفول و.

۲– د سویلي امریکا ختیځې غاړې ته ورسید.

۳– مرکاتور ونوموله.

۴– د استوا د کرښې سویلي برخې شاملې وې.

**۹– د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

د امریکا د لویې وچې په کشف کولوکې د مسلما نانو جغرافیه پوهانو رول: مسلما نانو جغرافیه پوهانو دا لویه و چه پخوا پیژندله، ابوریحان البروني د امریکا له کشف کوونکي کرستف کلمب څخه څه نا څه پنځه پیړۍ دمخه دا لویه وچه یې پیژندلې وه. د پخوانیو جغرافیه پوهانو د عقیدو پر خلاف یې چې د نړۍ د کرې ابادي یې د شمالي څلورمې برخې یعنې آسیا او اروپا پورې محدوده ګڼله د خپلې ذاتي پوهې په قوت پیداکړې وه چې د ځمکې شمالي مسکوني برخې په مقابل کې بله اباده مسکونه برخه هم شته او څلورمه بله برخه یې د سمندرونو اوبو را چاپیره کړې ده او همدې سمندرونو زموږ تر منځ بیلتون منځته راوستی دی او اړیکي یې ستونزمنې کړي دي.

بله نظریه هم ورکړي شوي ده چې له کولمب څخه د مخه یو چیني راهب د آسیا له ختیځ څخه امریکا ته د بیرنګ د آبناء له جنوبي برخې څخه تیر شوی لومړی الاسکا ته او بیا له هغه ځای څخه دکلفورنیا ټاپو وزمې ته رسیدلی دی.

ددې سفر د ثبوت یو دلیل هم د امریکایي سرو پوستکو او چینیانو تر منځ د ابادیو (معماریو) ورته والی دی.

**ماخذ**: جغرافیه جهان جلد دوم (اروپا، امریکا، استرالیا، اقیانوسیه و قطب جنوب) دوره کارداني تربیه معلم رشته علوم اجتماعي ۳۰۲

## د اته لسم لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس وخت: دوه درسي ساعتونه**

| سرلیکونه | د مطلبونو تشریح | |
|---|---|---|
| **۱- د زده کړې موضوع** | طبیعي جغرافیه | |
| **۲- د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې** | زده کوونکي باید د درس په پای کې لاندې موخوته ورسیږي.<br>هر اړخیزه موخه:<br>د امریکا د لویې وچې له طبیعي جغرافیې سره اشنایي<br>جزیې موخې<br>- د شمالي امریکا د زړو او لړولوړو غرونو په هکله پوهیدل.<br>- د امریکا د لویې وچې ځوانو او لوړو غرونو پیژندل.<br>- د امریکا د لویې وچې په ځوانو غرونوکې د تکتونیکی فعالیتونو په هکله زده کړه.<br>- د زړواو ځوانو غرونو تر منځ د توپیرونو پیژندل.<br>- د امریکا د نقشې پر مخ د غرونو ښودل.<br>- | |
| **۳- د زده کړې دلاروچارو (میتودونو) وړاندیزونه** | تشریح کول، لوستل، پوښتنې او ځوابونه او ډله ییز بحث | |
| **۴- د زده کړې مرستندویه توکي** | مجسمه کره، د امریکا طبیعي نقشې، د غرونوانځور، د مقایسه کولو انځورونه | |
| **۵- ارزونه** | شفاهي، لیکلي او د ځوانو او زړو غرونو سره پرتله کول. | |
| **٦- په ټولګي کې تدریسي فعالیتونه** | پیلوونکي فعالیتونه: ټولګي ته په مروجه طریقه ننوتل(سلام او روغبړ کول) د ټولګي تنظیم، حاضري اخیستل، د تیر لوست ارزونه، د زده کوونکو پواسطه له ټولګي څخه د بهر فعالیت وړاندې کول.<br>هڅوونکي فعالیتونه: په توره دړه د سرلیک لیکل، د ټولګي مخ ته د امریکا د طبیعي نقشې ځړول.<br>هڅوونکې پوښتنه: د امریکا دلویې وچې غرونه څه ګټې لري او کومې جغرافیوي ستونزې یې منځته راوړي دي؟ | ۵ دقیقې<br>۵ دقیقې |

| | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | ۷– د ښوونکي درسي فعالیتونه ( د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) |
|---|---|---|
| ۳۵ دقیقې | • هغه څه چې د تیرولوستنو څخه د ځوانو او زړو غرونو په هکله پوهیږي ځواب ورکوي. • په چوپه خوله لوست لولي آو د ستونزمنو لغاتونو او اصطلاحاتو پوښتنه کوي. • زده کوونکي ځیروي او هر هغه څه چې نه پوهیږي پوښتنه یې کوي. • زده کوونکي په ډلوکې تنظیم کیږي او د ښوونکو له لارښووني سره سم په انځورونو کې توپیرونه او ورته والی لست کوي. ټولګیوالوته یې لولي. زده کوونکي پوښتنو ته ځوابونه وایې | • له پیلوونکي فعالیت څخه وروسته پوښتنه کوي ځوان او زاړه غرونه به څه ځانګړتیاوې ولري. • ښوونکي په توره دړه د هر یوه (ځوانو او زړو غرونو) ځانګړتیاوې بیلې بیلې لیکي او پرتله کوي. • په چوپه خوله د نوي لوست د لوستلو لارښوونه کوي. • د زده کوونکو پوښتنو ته ځوابونه وایي. • د ځوانو او زړو غرونو ورته والی او توپیرونه په توره دړه لیکي. • د زده کوونکو پوښتنو ته د ځوابونو څخه وروسته د درس لنډیز وایې. • زده کوونکي په ډلو ویشي او هغه انځورونه چې د ټولګي د ننه فعالیت تر سرلیک لاندی تنظیم شوی زده کوونکو ته ورښیي او هغو ته لارښوونه کوي چې په دې انځورونوکې توپیرونه او ورته والی لست کړي. • ښوونکی ډله‌ییز فعالیت راغونډوي آو د درس لنډیز بیانوي. • د ارزونې په موخه د لوست ورستنی پوښتنې طرح کوي. • له ټولګي څخه د بهر فعالیت لارښوونه کوي. |

۸– د هڅوونکې پوښتنې ځواب: په غرونو کې کانونه شتون لري اود سیندونو سرچینې جوړوي خود ارام سمندرد مرطوبو کتلو خنډ هم ګرځي.

**د لوست دورستنیو پوښتنو ځوابونه**

ډیر صحیح ځوابونه غوره کړې

۱– صحیح ۲–غلط

جملې بشپړې کړئ

۱– د راکي غرونه ۲– مک کینلی د امریکا په متحده ایالتونو د الاسکا په ایالت کې ده

۳– کانکاګوا د ارجنتاین په هیواد کې ده.

**۹- د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

**د امریکا د لویې وچې زاړه غرونه**

د اپلاش غرونه: د شمالي امریکا په ختیځ کې غزنی سیمه له شمال ختیځ څخه جنوب لویدیځ ته غزیدلي ده، چې د اپلاش یا الگانی alleghani په نوم مشهوره ده. دغر ونو په دې لړی کې درې په یوې خوا غزیدلې دي او په سویلي امریکا کې زاړه غرونه د برازیل هیواد په ختیځ کې پراته دي.

**د امریکا د لویې وچې ځوان غرونه**

د راکي یا روشوز ځوان غرونه دي چې د ځمکې د پوټکي په دې نا آرامو غرونو لړی کې اورغورځونې او زیاتې زلزلې منځته راځي. په منځنۍ امریکا اود انتیل په ټاپوگانو کې هم زیاتی اورغورځونې او زلزلې کېږي.

د اندیز غرونه: د نړۍ ډېر اوږده غرونه دي چې څه ناڅه ۸۰۰۰ کیلومترو په اوږدوالي دآرام سمندر په غاړه له شمال څخه سویل ته موقعیت لري د ځمکې پیژندني له نظره د راکي د غرونو سره برابر عمر لري چی ۴۰ ملیونه کاله پخوا منځته راغلي دي.

د اندیز غرونه هم بې شمیره اورغورځونې لري لکه کوتاپاکسی cotapaxi اورغورځونې چې د اکوادور په هیواد کې اوس هم فعال دي او د ۵۸۹۶ مترو په لوړوالې د نړۍ ډیره لوړه اورغورځوونکې دی. د اورغورځونو په سبب ډیرې زلزلې هم په کې کېږي.

## د نولسم لوست د تدریس د لارښود پلان

**د تدریس وخت: دوه درسي ساعتونه**

| سر لیکونه | دمطلبونو تشریح | |
|---|---|---|
| **۱- د زده کړې موضوع** | د شمالي امریکا سیندونه | |
| **۲- د زده کـــړې (پـــوهنیزه، مهارتي او ذهنیتی) موخې** | زده کوونکو باید د درس په پای کې لاندې موخوته ورسیږي.<br>هر اړخیزه موخه<br>د شمالي امریکا له سیندونو سره اشنا شي.<br>جزیې موخې<br>د اتلانتیک سمندر د حوزې سیندونه معرفي کړي.<br>د شمالي کنګل سمندر د حوزې سیندونه بیان کړي.<br>د ارام (پسفیک) سمندر د حوزې سیندونه تشریح کړي.<br>د شمالي امریکا په اقتصاد کې د سیندونو ارزښت توضیح کړي.<br>په طبیعي نقشه کې د شمالي امریکا سیندونه وښیي.<br>د شمالي امریکا له لیکنې پرته نقشه بشپړه کړي. | |
| **۳- د زده کـــــــــړې لارو چارو(میتودونو) وړاندیزونه** | تشریح کول، پوښتنې او ځوابونه او ډلهییز فعالیت | |
| **۴-د زده کړې مرستندویه توکي** | طبیعي نقشه، د لوست کتاب، توره دړه او تباشیر | |
| **۵- ارزونه** | شفاهي، لیکلي او د ټولګي څخه بهر فعالیت | |
| **٦- په ټـــولګي کـــې درســـي فعالیتونه** | پیلوونکي فعالیتونه: ټولګي ته په مروجه طریقه ننوتل، سلام او روغبړکول د ټولګي تنظیم، حاضري اخیستل، د تیر لوست ارزونـــه او د زده کوونکـــو پواسطه له ټولګي څخه د بهر فعالیت وړاندې کول.<br>هڅوونکي فعالیتونه: په توره دړه د سرلیک لیکل، د ټولګي مخ ته د امریکا د طبیعي نقشې ځړول او په هغې کې د شمالي امریکا د سیندونو ښودل.<br>هڅوونکې پوښتنه: د میسي سي پي سیند ولې په دې نوم یادیږي؟ | وخت<br>۵ دقیقې<br>۵ دقیقې |

| ۷–د ښوونکي درسي فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | وخت |
| --- | --- | --- |
| د پیلوونکې او هڅوونکې مرحلې وروسته په چوپه خوله د نوي لوست د لوستلو لارښوونه کوي.<br>● د نقشې پر مخ د میسي سي پي د سیند سرچینه او مصب وروښي او اقتصادي ارزښت یې توضیح کوي.<br>● د سنت لارنس د سیند جغرافیوي موقعیت په نقشه کې ښيي او اقتصادي اهمیت په هکله یې پوښتنه کوي.<br>● د شمالي کنګل سمندر په حوزه کې د میکنزي د سیند سرچینه او مصب په نقشه کې ورښيي او ددې سیند د نوم او د اقتصادي ارزښت په هکله یې توضیحات ورکوي.<br>● د ارام (پسفیک) د سمندر د حوزې د سیندونو په ډله کې د کلورادو او کلمبیا د سیندونو په هکله توضیحات ورکوي او په نقشه کې یې ورښيې.<br>● درس لنډیز ورته وایې<br>● ټولګي په ډلو ویشي او هرې ډلې ته د بحث بیله موضوع ورکوي.<br>● درس راټولوي او خلاصه کوي.<br>● ددرس ارزونه کوي.<br>● له ټولګي څخه د بهر فعالیت لارښوونه کوي. | ● په چوپه خوله درس لولي او د ستونزمنو کلماتو پوښتنه کوي.<br>● زده کوونکي ځیروي او هغه څه چې پرې نه پوهیږي د ښوونکي څخه پوښتنه کوي.<br>● زده کوونکې ځواب ورکوي.<br>زده کوونکي په ځیر سره متوجه وي.او هغه څه چې پرې نه پوهیږي له ښوونکي څخه یې پوښتنه کوي.<br>زده کوونکي په ډلوکې تنظیم کېږي او هره ډله د شمالي امریکا سیندونه په نقشه کې ښيي او پایلی یې ټولګي والوته وایي<br>● ځواب ورکوي. | ۳۵ دقیقې |

۸– د **هڅوونکي پوښتنې ځواب:** د اصلي اوسیدونکو په ژبه د لوی سیند معنا لري.

**د لوست دورستنیو پوښتنو ځوابونه**

لاندی جملې په مناسبو کلمو بشپړي کړئ

۱– د ایتاسکا جهیل په منیسو تا په ایالات کې د میسي سي‌پي د سیند سرچینه جوړوي.

۲– د میسي سي‌پي د سیند مرستیال چې له لویدیځې غاړې څخه ورتویږي د میسوری سیند او له چپې غاړې مرستیال یې چې د ختیځې غاړې ورتویږي د اوهایو سیند دی.

لنډځواب ورکړئ

۱– میکنزي ۲– د کلفورنیا په خلیج کې تویيږي ۳– د مصر په هیواد کې د نیل د سیند، او دسویلی امریکا د امازون له سیند څخه وروسته دریمه درجه لري

۴– د ارام (پسفیک) سمندر د کلفورنیا په خلیج کې تویيږي

۵– د میسي سي‌پي اوسَنت لارنس سیندونه دي.

**د ښوونکو لپاره اضافي معلومات**

د میسي سي‌پي سنید د نړۍ او د شمالي امریکا د لویو سیندونو له ډلې څخه دي. چې سرچینه یې د مینیسوتاد ایالت پــه ځنګلونوکې د ایتاسکا جهیل جوړوي، چې تر ۱۸۳۲م کال پورې نا پیژندلي پاتې و، د میسي سي‌پي د سیند اوږدالــی د سرچینې څخه تر مصب پورې ۳۷۷۹ کیلومتره او د میسوري د سیند د سرچینې څخه ۶۴۲۰ کیلومتره دی.

د میسي سي‌پي سیند د شمالي امریکا ډېر اوږد سیند دی چې او به یې د امریکا د متحده ایالتونو د ۳۱ ایالتونو څخــه را ټولیږي. د اوهایو د سیند سره له یوځای کیدلو څخه وروسته یې چټکتیا کمېږي او په اوارو سیمو کې بهیـــږي، لــه دې ځای څخه وروسته د بیړیو چلولو وړ دی.

د میسي سي‌پي د سیند نوم د هغه ځای د سرو پوستکو خلکو له ژبې څخه اخیستل شوي دي یعنې (مي‌سي) لوی او (ســـی پي) اوبه معنا لري.

هغه سیندونه چې د اپلاش د غرونو په ختیځې لمنې کې بهیږي لنډ او له اوبو څخه ډک دي او د خپل تگ په لوري کـــې زیاتې ځړوبې تشکیلوي چې له انرژۍ څخه یې د بریښنا د تولید لپاره گټه اخیستل کېږي. مصب(خوله) یـــې پراخـــه او د بندرونو جوړونې لپاره برابر دی.

د منځنۍ او سویلي امریکا د ارام (پسفیک) د سمندر د غاړې سیندونه ساحل ته د غرونو د لړیو د نږدیوالي له سببه لنــډ، چټک او د بیړیو چلولو وړ نه دي خو د بریښنا د تولید لپاره گټور دي.

## د شلم لوست د تدریس د لاربنود پلان

د تدریس وخت: یو درسي ساعت

| سر لیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱– د درس موضوع | د سویلي امریکا سیندونه | |
| ۲– د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې | زده کوونکي باید د درس په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>هر اړخیزه موخه:<br>د سویلي امریکا له سیندونو سره اشنا کیدل.<br>جزیې موخې<br>– د سویلي امریکا له طبیعي جغرافیې سره اشنا شي.<br>– د سویلي امریکا لوی سیندونه معرفي کړي.<br>– د سویلي امریکا په نقشه کې دې سیندونه وښیي.<br>– د سویلي امریکا په اقتصاد کې د سیندونو ارزښت توضیح کړي.<br>– د سویلي امریکا د لیکنې پرته نقشه بشپړه کړي. | |
| ۳– د زده کړې د لاروچارو (میتودونه) وړاندیزونه | توضیح کول، عملي کار، پوښتنې او ځوابونه او تشریح کول | |
| ۴– د زده کړې مرستندوی توکي | د سویلي امریکا نقشه، سویلي امریکا د لیکنې پرته نقشه، دلوست کتاب، توره دړه او تباشیر | |
| ۵– ارزونه | شفاهي، لیکلي او عملي کار | |
| ۶– په ټولګي کې درسي فعالیتونه | پیلوونکي فعالیتونه: په مروجه طریقه ټولګي ته ننوتل (سلام او رغبړکول) د ټولګي تنظیم، حاضري اخیستل، د تېر لوست ارزونه، د زده کوونکو لخوا له ټولګي څخه د بهر فعالیت وړاندی کول.<br>هڅوونکي فعالیتونه: په توره دړه د سرلیک لیکنه، د ټولګي مخ ته د سویلي امریکا د نقشې ځړول او په هغې کې د سویلی(جنوبی) امریکا د سیندونو ښودل.<br>هڅوونکې پوښتنه: ولې په سویلي امریکا کې له اوبو څخه ډک سیندونه بهیږي؟ | وخت<br>۵ دقیقې<br>۵ دقیقې |

| ۷– د ښوونکې درسي فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | وخت |
| --- | --- | --- |
| له پیلوونکې او هڅوونکې مرحلې وروسته په چوپه خوله د نوي لوست د لوستلو لارښوونه کوي.<br>– د پښتنو د ځوابونو د ورکولو ورسته پوښتنې کوي<br>۱– نقشې ته وګورئ ولې په سویلي امریکا کې ډیر باران اوري؟<br>۲– ایا پوهیږئ د نړۍ د ډیرو اوبو لرونکی سیند کوم دی او ولې؟<br>۳– د امازون سیند لوی مرستیالان کوم دی؟<br>۴– د امازون سیند ولې په دې نوم یادیږي؟<br>۵– د سویلي امریکا نور لوې سیندونه کوم دي؟<br>٦– د نړۍ ډیر اوچت ځړوب د کوم سیندپه تګ لوري کې منځته راغلی دی؟<br>زده کوونکو ته وخت ورکوي چې صحیح ځواب پیدا کړي.<br>– زده کوونکي په ډلو ویشي چې هر ډله د یوه سیندد سرچینې، مصب او اقتصادي ارزښت په هکله بحث وکړي.<br>– د ډلهییز فعالیت پایلې خلاصه کوي<br>– د درس لنډیز ورته وایي<br>– د درس وروستنۍ پوښتنې طرح کوې<br>– له ټولګي څخه د بهر فعالیت لارښوونه کوي. | – نوی لوست په چوپه خوله لولي او هر هغه څه چې پرې نه پوهیږي له ښوونکي څخه پوښتنه کوي.<br><br>ځواب ورکوي.<br>۱– د هغې موقعیت په استوایې سیمه کې او اتلانتک له سمندر څخه د مرطوبو هوایې کتلو را ننوتل دي.<br>۲– د امازون سیند دی او سبب یې هم ډیر بارانونه او زیات مرستیالان دي.<br>۳– له ښی خوا څخه د ما دیرا سیند او له چپې خوا څخه د نګرو سیند دی.<br>۴– امازون، د غړ لرونکو او بو په معنا دي.<br>او سبب یې هم د هغه په مصب (خوله) کې د مد منځته راتلل دي.<br>۵– د پارانا او ورینوکو سیندونه دی.<br>٦– د اورینوکو د سیند په تګ لوری کې موقعیت لري.<br>– زده کوونکي په ډلو ویشل کیږي او د ښوونکي له لارښوونې سره سم بحث کوي او پایلې یې ټولګیوالوته وایې.<br><br>زده کوونکي ځیروي<br>– د پوښتنو ځواب وایې. | ۳۵ دقیقې |

۸– د هڅوونکې پوښتنې ځواب: استوایې بارانونه او ډیرو مرستیالانو درلودلوپه سبب.

**د لوست دوروستنیو پوښتنو ځوابونه**

صحیح ځواب غوره کړئ

۱– صحیح

۲– صحیح

۳– د نړۍ لوړ ځړوبي په ونزویلا کې دی.

۴– د اورینوکو سیند د کارابین په سمندرګي کې توییږي.

**جملې بشپړې کړئ**

۱– د امازون د سیند سرچینه استوایې بارانونه تشکیلوي.

۲– د امازون د سیند دښي غاړې مرستیال یې د مادیرا سیند او د چپې غاړې مرستیال یې د نګرو سیند دی.

**۹- دښوونکي لپاره اضافي معلومات**

**د امازن سیند**

د امازون سیند د نړۍ د ډیرو زیاتو اوبو لرونکی سیند دی چې د برازیل په هیواد کې بهیږي، اوږدالی یې ۶۴۸۰ کیلومترو ته رسیږي، د اندیز له غرونو څخه سر چینه اخلي او پر خپل تګ لوري کې له ۵۰۰ مرستیالانو سره یوځای کیږي نو ځکه ټول کال له اوبو څخه ډک وي. په منځني ډول په ثانیه کې ۱۸۰۰۰۰متر مکعبه اوبه د اتلانتیک سمندر ته ور اچوي، دا اندازه اوبه له ټولو هغو سیندنو د اوبو $\frac{1}{5}$ برخه ده چې سمندرنو ته توییږي؛ نو په همدې سبب ددې سیند په خوله (مصب) کې اوبه د ۱۶۰ کیلو مترو په واټن تروي (مالګینی) نه وي.

## د یو ویشتم لوست د تدریس د لاربنود پلان

د تدریس وخت: دوه درسي ساعتونه

| سرلیکونه | د مطلبونو تشریح | |
|---|---|---|
| ۱- د زده کړې موضوع | د امریکا د لویې وچې جهیلونه | |
| ۲- د زده کړې (پــوهنیــزې مهارتي او ذهنیتي) موخې | زده کوونکي باید د درس په پای کې لاندی موخوته ورسیږي.<br>هر اړخیزه موخه<br>د امریکا د لویې وچې له جهیلونو سره اشنا کېدل.<br>جزیې موخې<br>- د امریکا له لویو جهیلونو سره اشنا شي.<br>- دنیاگارا د ځروبې په هکله معلومات حاصل کړي.<br>- د امریکا د متحده ایالتونو د پنځگونو جهیلونو او جنــوب لویــدیځو جهیلونو د ځانگړتیاوو تر منځ توپیر وکړای شي.<br>- د منځنۍ امریکا جهیلونه و پیژني او نومونه یې واخیستلاي شي.<br>- د سویلي امریکا د ډیرلوړ جهیل په هکله زده کړه حاصله کړي.<br>- د امریکا د جهیلونو د ښوولو لپاره له نقشې څخه گټه واخیستلای شي.<br>- د امریکا په بی لیکنې نقشه کې د جهیلونو نومونه ولیکلی شي. | - |
| ۳- زده کــړې لارو چـــارو (میتودونه) وړاندیز | توضیح کول، پوښتنې او ځوابونه او ډله ییز بحث | |
| ۴- د زده کــړې مرســتندویه توکي | د امریکا طبیعي نقشه، د لوست کتاب، د ښوونکي لاربنود کتــاب، تــوره دړه، او تباشیر | |
| ۵- ارزونه | شفاهي، لیکلي او عملي کار | |
| ۶- په ټــولگي کــې د درس ورکولو فعالیتونه | پیلوونکي فعالیتونه: په مروجه طریقه ټولگي ته ننوتل (سلام او روغبړ کول) د حاضرۍ اخیستل، د تیر لوست ارزونه، د زده کوونکو لخوا لــه ټــولگي څخه د بهر فعالیت وړاندې کول.<br>هڅوونکي فعالیتونه: د تورې دړې پر مخ د سرلیک لیکل، د ټولگي مخ ته د امریکا د لویې وچې دطبیعي نقشې ځړول، او په هغې کې د شمالي امریکا د جهیلونو ښودل.<br>هڅوونکې پوښتنه: له جهیلونو څخه څه گټه اخیستل کیږي؟ | ۵ دقیقې<br><br><br>۵ دقیقې |

| ۷- د ښوونکي درسي فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| • د پیلوونکې مرحلې له عملي کولو وروسته د زده کوونکوته په چوپه خوله د نوي لوست د لوستلو لارښوونه کوي.<br>• د ځوابونو ورکولو وروسته پوښتنې کوي.<br>نقشې ته وګورئ او ووایې چې:<br>۱- د امریکا په لویه وچه کې لوی جهیلونه چیرې واقع شوي دي؟<br>۲- د نیاراګا ځروبی د کوم سیند په بهیر کې او په کوم هیواد کې پروت دی؟<br>۳- تریو (مالګین) جهیل د امریکې د متحدو ایالتونو په کومه برخه کې پروت دی.<br>۴- د منځنۍ او سویلي امریکا لوی جهیلونه کوم دي؟<br>• د ډله ییز فعالیت په هکله لارښوونه کوي.<br>• ډله ییز فعالیت راټولوي او خلاصه کوي یې.<br>• د ارزونې لپاره د لوست له وروستنیو پوښتنو څخه ګټه اخلي.<br>• د لوست لنډیز وایې او له ټولګي څخه د بهر فعالیت د اجراءکولو لارښوونه کوي. | - په چوپه خوله درس لولي او هغه څه چې نه پوهیږي له ښوونکي څخه پوښتنه کوي.<br>۱- د کاناډا او د امریکا د متحدو ایالتونو د پولو ترمنځ واقع شوي دي.<br>۲- د نیاګارا د سیند په بهیر کې چې دایری او انتاریو جهیلونه سره نښلوي او د دواړو هیوادونو کانادا او امریکې د متحدو ایالتونو په پوله کې موقعیت لري.<br>۳- د امریکې د متحدو ایالتونو په لویدیځه برخه کې.<br>۴- د منځنۍ امریکا لوی جهیل نیکاراګوا او د سویلی امریکا تي تي کاکا جهیل دي.<br>• زده کوونکي په ډلو کې تنظیم کیږي او د نقشې پرمخ خپل د نظر وړ جهیلونه پیدا کوي<br>• پوښتنو ته ځوابونه وایې. | ۳۵ دقیقې |

هڅوونکې پوښتنې ځواب د بیړ یوچلولو د اوبه خور او کب نیولو لپاره ګټه اخیستل کیږي.

د لوست د ورستنیو پوښتنو ځوابونه:

۱- سوپریر، مشیګان، هورن، ایری او انتاریو دي.

۲- ګریت بیر، ګریت سیلیو، وینی پک او منی توبا دي.

۳- د هغو جهیلونو اوبه چې د سیندونو سرچینه جوړوي یا هغوته د اوبو راتلل د هغو اوبو د بړاس په پرتله زیاتې وي اوبه یې خوږې او د هغو جهیلونو اوبه چې هغوته د اوبو د ورتګ اندازه د هغو د بړاس په پرتله لږی وي؛ نو اوبه یې هم تروي (مالیګنې) وي.

۴- تي تي کاکا جهیل دی.

**۹- د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

پنځګوني جهيلونه چې د کانادا او د امريکې د متحدو ايالتونو په پولو باندې پراته دي سوپرير، مشيګان، هورن، ايري او انتاري دي، چې کولاى شو د يوى بيړۍ په واسطه د اتلانتيک له سمندر څخه د سنت لارنس د سيند له لارې پنځګونو جهيلونو او د شمالي امريکا منځنيو برخو ته لاړ شو.

د نياګارا ځړوبی د نياګارا د سيند په بهير کې دايري او انتاريو د جهيلونو تر منځ واقع شوي دی، اوبه يې د کاناډا له هيواد څخه يعنې (له شمال څخه جنوب خواته) د امريکې د متحده ايالتونو خاورې ته تويیږي، د اوبو د انرژۍ ستيشن هم په همدی ځای کې جوړ شوې دی اوپه دواړو هيوادونو (د امريکي په متحده ايالتونو او کانادا پورې اړه لري). دا ځړوبی ځانګړی توريستکي ارزښت لري.

د نياګارا د ځړوبي د اوبو بهير د زيات سور د لرلو له سببه نړيوال شهرت لري. نياګارا د هغه ځای د اصلي اوسيدونکو په ژبه د غړ لرونکو اوبو په نوم دی.

## د دوو ويشتم لوست د تدريس د لارښود پلان

د تدريس وخت: يو درسي ساعت

| سر ليکونه | د مطلبونو تشريح | |
|---|---|---|
| ۱– د زده کړې موضوع | د امريکا دلويې وچې سمندرگي | |
| ۲– د زده کـړې (پـوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي) موخې | زده کوونکو بايد د درس په پای کې کې لاندې موخو ته ورسيږي.<br>هر اړخيزه موخه:<br>د امريکا د لويې وچې له سمندرگيو سره اشنا شي.<br>جزيې موخې<br>– د امريکا د لويې وچې د لويو سمندرگيو نومونه واخلي.<br>– د امريکا د لويې وچې د ختيځو او شمالي سمندرگيو تر منځ توپير و کړي.<br>– د امريکا د لويې وچې شمال لويديځ سمندرگي و پيژني.<br>– د امريکا د لويې وچې په طبيعي نقشه کې د سمندرگيو موقعيت وښيي.<br>– د امريکا د لويې وچې بې ليکنې نقشه بشپړه کړي. | |
| ۳– د زده کـــــړې د لارو چارو(ميتودونو) وړانديز | تشريح کول، پوښتنې او ځوابونه، ډله ييزه مباحثه او لوستل | |
| ۴– د زده کـړې مرســتندويه توکي | د امريکا د لويې وچې طبيعي نقشه او بې ليکنې نقشه، د لوست کتاب، تـوره دړه او تباشير | |
| ۵– ارزونه | شفاهي، ليکلي او عملي کار | |
| ٦– په ټـولگي کـې د درس ورکولو فعاليتونه | پيلوونکي فعاليتونه: په مروجه طريقه ټولگي ته ننوتل (سلام او روغبړ کول)، د حاضرۍ اخيستل، د تېر لوست ارزونه او د زده کوونکو پواسطه د ټولگي څخه د بهر فعاليت وړاندې کول.<br>هڅوونکي فعاليتونه: په توره دړه د سرليک ليکل، د ټولگي مخ ته د امريکا د لويې وچې د طبيعي نقشې ځړول.<br>هڅوونکې پوښتنه: سمندرگي څه اقتصادي ارزښت لري؟ | وخت<br>۵ دقيقې<br>۵ دقيقې |

| ۷- د ښوونکي درسي فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| ● - د پیلوونکې مرحلې له عملي کولو وروسته زده کوونکو ته په چوپه خول د نوي لوست د لوستلو لارښوونه کوي.<br>● د زده کوونکو پوښتنو ته ځوابونه وایي.<br>● پوښتنه کوي نقشې ته وګورئ.<br>۱- ددې لویې وچې لوی سمندرګي کوم دي او څه اقتصادي ارزښت لري؟<br>۲- ایا د کانادا د هیواد شمالي او شمال ختیځ سمندرګي ټول کال د بېړیو چلولو وړ دي؟<br>۳- د آسیا د لویې وچې او د شمالي امریکا ترمنځ کومې آبناء ګانې او سمندرګې پراته دي؟<br>● د صحیح ځوابونو له اوریدلو وروسته درس راټولوي او لنډیز یې وایي.<br>● د ډله‌ییز فعالیت لارښوونه کوي چې د بې لیکنې نقشې پر مخ د سمندرګیو نومونه ولیکي.<br>● د ارزونې لپاره د لوست له ورو ستنیو پوښتنو څخه ګټه اخلي.<br>● له ټولګي څخه د بهر فعالیت لارښوونه کوي. | - نوي لوست په چوپه خوله لولي او هر هغه څه چې پرې نه پوهیږي له ښوونکي څخه پوښتنه کوي.<br><br>۱- ډیر لوی سمندرګی د کارابین سمندرګی دی چې د حمل او نقل له پلوه ځانګړی ارزښت لري.<br>۲- د شمال کنګل سمندر ته د نږدیوالي په سبب د کال زیاتره وخت د بیړیو چلولو وړ نه دي، فقط د څیړونکو بیړۍ ورڅخه ګټه اخلي.<br>۳- د چوکاتسک یا چوکچي سمندرګی، د بیرنګ سمندرګی او د بیرنګ آبناء.<br><br>زده کوونکي په ډلوکې تنظیم کېږي او بې لیکنې نقشې پرمخ په ټاکلو ځایوکې د سمندرګیو نومونه لیکي<br>زده کوو نکي ځوابونه ورکوي | ۳۵ دقیقې |

**۸- د هڅوونکو پوښتنو ځوابونه**

- له سمندرګیو څخه د وړلو او راوړلو، د کبانو ښکار کولو، مالګي تولیدولو او داسې نورې ګټې اخیستل کېږي.

- د پانامې کانال د پانامې په هیواد کې موقعیت لري. د ارام (پسفیک) او اتلانتیک سمندرونه سره نښلوي او ځانګړی اقتصادي ارزښت لري.

د لوست د ورستنیو پوښتنو ځوابونه

۱- د کارابین سمندرګی ۲- د پانامې کانال ۳- د بیرنګ آبناء د امریکا د لویې وچې په لودیځ کې د آسیا او امریکا د لویو وچو ترمنځ بیلوونکې پوله جوړوي.

| د کارابین سمندرگی | د امریکا د لویې وچې شمالي سمندرگي |
| --- | --- |
| سب تروپیک په اقلیمي سیمې کې پر وت دی د کال په اوږدو کې د بیړۍ چلولو وړ دي. | په قطبي اقلیمي سیمې کې پراته دي، دځیرونکو له بیړیو څخه پرته نورې بیړۍ ورڅخه گټه نه اخلي.ځکه چـــې د کنگل کیدلو له امله د کال په اوږدو کې د بیړیو چلولو وړ نه دي |

**۹- د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

د پانامې کانال: د ارام (پسفیک) او اطلس (اتلانتیک) د سمندرونو ترمنځ د منځنۍ امریکا د پانــامې پــه هیــواد کــې جوړشوي دي. د کانال ټول پراخوالی **۱۴۳۲** کیلومتره مربع، اوږدوالی یې **۶۵** کیلومتره او ژور والی یې تــوپیر لــري، منځني ژور والی یې **۱۲** متره او سور یې **۹۰** متره دی. په **۱۹۱۴**م کال کی پرانیستل شو. دا کانال د ټولو هیوادونــو د سوداگریزو او نظامي بیړیو د تیریدلو لپاره د محصول ورکولو په بدل کې ازادوي.

**د کارابین سمندرگی**: استوایي تودې اوبه له دې سمندرگي څخه د مکسیکو خلیج له لارې د فلوریدا د ټاپو وزمــې تــر څنگ اوبو د تیریدو وروسته د گلف ستریم بهیر منځته راوړي. ددې سمندرگي اوبه د جون (جوزا) له میاشتې څخه تــر اکتوبر (میزان) پورې توفاني وي، استوایي تند بادونه ددې سمندرگي د ټاپوگانو اوسیدونکو ته ډیر تاوانونه اړوي. پر غاړه یې د کلمبیا په هیواد کې ډیر لوی بندر بارون گوئیل Barran quilla هم جوړ شوی دی.

## د درویشتم لوست د تدریس د لارښود پلان

د تدریس وخت: یو درسي ساعت

| سر لیکونه | د مطلبونو تشریح | |
|---|---|---|
| ۱– د درس موضوع | د شمالي امریکا خلیجونه | |
| ۲– د زده کړې (پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي) موخې | زده کوونکي باید د درس په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>هراړخیزه موخه<br>د شمالي امریکا د خلیجونو له جغرافیایي موقعیت او اقتصادي ارزښت سره اشنا شي<br>جزيي موخې:<br>۱– د شمالي امریکا د خلیجونو د شتوالي پر علت پوهیدل.<br>۲– د مکسیکو د خلیج په جغرافیوي موقعیت پوهیدل.<br>۳– د شمالي امریکا د خلیجونو په ارزښت پوهیدل.<br>۴– شمالي امریکا د شمالي خلیجونو په ستونزو پوهیدل<br>۵– په نقشې کې د خلیجونو موقعیت ښودل.<br>۶– د امریکا د لویې وچې بې لیکنې نقشې بشپړول.<br>۷– د ورکړشوي جدول بشپړول.<br>۸– د خلیجونو اقتصادي ارزښت توضیح کول | |
| ۳– د زده کړې د لاروچارو (میتودنو) وړاندیزونه | تشریح کول، پوښتنې او ځوابونه، لوستل، او ډلهییزه مباحثه. | |
| ۴– د زده کړې مرستندوی توکي | د خلیجونو انځورونه د لوست د کتاب نقشې، د شمالي امریکا بې لیکنې نقشه، د ښوونکو د لارښود کتاب | |
| ۵– ارزونه | شفاهي، لیکلي او عملي کار | |
| ۶– په ټولګي کې د درس ورکولو فعالیتونه | پیلوونکي فعالیتونه: په مروجه طریقه ټولګي ته ننوتل(سلام او روغبړ کول) د ټولګي تنظیم حاضري اخیستل، د تیر لوست ارزونه او د زده کوونکو په واسطه له ټولګي څخه د بهر فعالیت وړاندې کول.<br>هڅوونکې فعالیتونه: په توره دړه د سرلیک لیکل، د ټولګي مخ ته د نقشې ځړول.<br>هڅوونکې پوښتنه: ولې د امریکا په لویه وچه کې ډېر خلیجونه شته ؟ | وخت<br>۵ دقیقې<br>۵ دقیقې |

| ۷- د ښوونکي درسي فعالیتونه (دمفاهیمو زده کــړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | وخت |
| --- | --- | --- |
| ● د هڅوونکې مرحلې له تطبیق وروسته له زده کوونکــو غواړئ چې نوی لوست په چوپه خوله ولولي او هغه څه چې پرې نه پوهیږي پوښتنه وکړي.<br>● ښوونکي نوموړی پوښتنې له زده کوونکو سره شریکوي که هغوی پوه نه شول سم ځواب ورته وایي.<br>● له زده کوونکي څخه پوښتنه کوي.<br>۱- د امریکا په لویه وچې کې کوم عوامل د بیړیو چلولو د پرمختګ سبب شوي دي؟<br>۲- ددی لویې وچې لوی خلیج کوم دی او له هغې څخــه څه اقتصادی ګټې اخیستل کېږي؟<br>۳- د امریکا شمال خلیجونه ولې د بیړیو چلولــو وړ نــه دی؟<br>۴- د وچې پر اقلیم د هودسن د سوړ خلیج په شمال کــې او مکسیکو تود خلیج په جنوب کې څه اغیزې لري؟<br>۵- د شمالي امریکا د لویدیځې غاړې لوی جهیلونه کــوم دي؟<br>● زده کوونکي په ډلو ویشي او له هغو څخه غواړی چــې نقشه یو د بل په مرسته بشپړه کړي.<br>● د ډلهییز فعالیت پایلې جمع بندي کوي.<br>● درس خلاصه کوي.<br>● د ارزونې لپاره د لوست ورستنۍ پوښتنې طرح کوي.<br>● له ټولګي څخه د بهر فعالیت لارښوونه کوي. | لوست په چوپــه خولــه لــولي او ســتونزمن اصطلاحات او کلمات د ښوونکي څخه پوښتنه کوي.<br><br>۱- د دوه سمندرنو د ارام (پسفیک) او تلانتیک تر منځ موقعیت.<br>۲- د مکسیکو خلیج دی او اقتصادي ارزښــت یې بیړۍ چلول، کبانو نیول، د نفتو او طبیعــي ګازونو رااېستل او مالګې تولیدول دي.<br>۳- د کنګل کیدلو په سبب.<br>۴- په ژمي کې ساړه بادونه د شمال څخه سویل ته او په دوبي کې تاوده او مرطــوب بادونـــه د جنوب څخه شمال لورته منځته راوړي.<br>۵- د الاسکا او کلفورنیا خلیجونه او نور.<br><br>په ډلو کې تنظیم کېږي او د کاپي شوې نقشې پر مخ د خلیجونو نومونه لیکي.<br>ځوابونه ورکوي | ۳۵ دقیقې |

۸- د هڅوونکې پوښتنې ځواب: ددې وچې ښه موقعیت د وو سمندرونو تر منځ او د اوبو ننوتل په وچه کې دي.

د لوست د وروستنیو پوښتنو ځوابونه

۱- د مکسیکو له خلیج څخه د وړلو او راوړلو، د کبانو نیولو، د نفتو او طبیعي ګاز د را ایستلو، د مالګې د تولید لپــاره ګټه اخیستل کېږي.

۲- د فوندي کوچنی خلیج او د هودسن لږ ژور خلیج موقعیت لري.

۳- شمالي قطب ته د نږدیوالي په سبب ساړه اوکنګل وي او حتی په اوړي کې هم د اوبو د تودوخې درجه کله کلــه د سانتي ګراد ۱۰+ درجو ته رسیږي.

۴- د کلفورنیا او الاسکا خلیجونه

**۹– د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

**د امریکا د لویې وچې خلیجونه:**

د سمندرونو او سمندرګيو اوبه د هوا د فشار توپیر او د بادونو د لګیدلو په سبب د څپو (موجونو) په څیر پــه حرکــت راځي. او د بادونو د لګیدلو د قوت په تناسب د اوبو لوی حجم د قوي څپو (موجونو) په بڼه د وچې پــه لــور حرکــت کوي، چې داڅپې د کوچنیو بیړیو لپاره ډیرې خطرناکې وي. د څپو ضربات د نورو عواملو تر څنګ د سواحلو د توږلو، تخریبولو، د کوچنیو او لویو خلیجونو په منځته راتللو کې مهم رول لوبوي.

د سمندر یا سمندرګي هغه اوبه چې په وچه کې ورانده تللي وي اویا په بل عبارت د سمندر یا سمندګي هغه برخه چــې درې خواوته یې وچه اویوې خواته یې اوبه وي، د خلیج په نوم یادیږي.دا ډول جوړښتونه زیاتره د اوبو ننو تل د ســاحل ماتو او ژورو برخو کې منځته راځي.

## د ځلرویشتم لوست د تدریس د لارښود پلان

د تدریس وخت: یودرسي ساعت

<table>
<tr><th>سرليکونه</th><th colspan="2">د مطلبونو تشريح</th></tr>
<tr><td>۱– د درس موضوع</td><td colspan="2">د سویلي امریکا خلیجونه</td></tr>
<tr><td>۲– د زده کړې (پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي) موخې</td><td colspan="2">زده کوونکي باید د درس په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>هر اړخيزه موخه:<br>د سویلي امریکا د خلیجونو له جغرافیایي موقعیت سره اشنا شي.<br>جزيي موخې<br>۱. د سويلي امريكا د اتلانتیک سمندرد غاړو د خليجونو په هکله پوهيدل.<br>۲. د سويلي امريكا د آرام (پسفیک) سمندر د غاړې د خلیجونو پیژندل.<br>۳. د سويلي امريكا د بې ليكنې نقشې بشپړ ول.<br>۴. د سويلي امريكا خلیجونه پر نقشې ښودل.</td></tr>
<tr><td>۳– د زده کړې د لاروچارو (ميتودونه) وړانديزونه</td><td colspan="2">تشریح کول، پوښتنې او ځوابونه، لوستل، او ډله ییز فعالیت</td></tr>
<tr><td>۴– د زده کړې مرستندوی توکي</td><td colspan="2">د سويلي امريكاطبيعي نقشه، بې لکنې نقشه، د لوست کتاب، د ښوونکي د لارښود کتاب توره دړه او تباشیر</td></tr>
<tr><td>۵– ارزونه</td><td colspan="2">شفاهي، ليکلی او عملي کار</td></tr>
<tr><td>٦– په ټولګي کې د درس ورکولو فعالیتونه</td><td>پیلوونکي فعالیتونه: ټولګي ته په مروجه طریقه ننوتل(سلام او روغبړ کول) د ټولګي تنظيم، حاضري اخیستل، د تیرلوست ارزونه او د زده کوونکو لخوا له ټولګي څخه د بهر فعالیت وړاندې کول.<br>هځوونکي فعاليتونه: په توره دړه د سر لیک لیکل، د ټولګي مخې ته د سویلي امریکا طبيعي نقشې ځړول.<br>هځوونکي پوښتنه: ايا د سويلي امريكا ټول خليجونه د بيړۍ چلولو وړ دي؟</td><td>وخت<br>۵ دقيقې<br>۵ دقيقې</td></tr>
</table>

| ۷- د ښوونکي درسي فعالیتونه ( د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| - پیلوونکي او هڅوونکي مرحلې څخه وروسته د زده کوونکو څخه غواړي چې نوي لوست په چوپه خوله ولولي او هر هغه څه چې پرې نه پوهیږي پوښتنه یې وکړي.<br>- د زده کونکو د پوښتنو د ځوابونو وروسته نقشې ته ګوري او لاندې پوښتنې طرح کوي.<br>۱- ایا د جنوبي امریکا د اتلانتیک سمندر په غاړه لوی خلیجونه شته ؟<br>۲- ستا سو له نظره کوم خلیجونه او د سیندونو خولې (مصب) د بیریو چلولو وړ دي؟<br>۳- د آرام سمندر په غاړې کوم لوی خلیجونه شته ؟<br>۴- کوم خلیجونه یې د بیړیو چلولو وړ دي؟<br>● زده کوونکو ته د نقشې په مرسته د ځوابونو د پیدا کولو لارښوونه کوي؟<br>● درس خلاصه کوي.<br>● زده کوونکي په ډلو ویشي او د سویلي امریکا دبې لیکنې نقشې د بشپړیدلو لارښوونه کوي.<br>● د لوست د ورستنیو پوښتنو په مرسته د درس ارزونه کوي.<br>● له ټولګي څخه د بهر فعالیت لارښوونه ورته کوي. | په چوپه خوله نوی لوست لولي او ستونزمن اصطلاحاتو پوښتنه کوي.<br>پوښتنو ته ځوابونه ورکوي.<br>۱- د ارجنتاین هیواد په ختیځ کې څو کوچني خلیجونه شته دي.<br>۲- د سادو مارکوس خلیج، د امازون او پارانا د سیندونو خولې.<br>۳- د پانامې خلیج، د اکوادور په هیواد کې د ګوایا ګیل خلیج او د چیلي په هیواد کې د کوار ګوادو او دیپنیاس خلیجونه<br>۴- د پانامې، دګوایاګیل، کوار ګوادو او دی پنیاس خلیجونه.<br>زده کوونکي په ډلو کې تنظیم او بې لیکنې نقشه بشپړه وي.<br>د پښتنو ځوابونه وایي | ۳۵<br>دقیقې |

۸- د هڅوونکې پوښتنې ځواب: ژور او لوی خلیجونه یې د بیړیو چلولو وړ دي.

**د درس د وروستنیو پوښتنو ځوابونه**

۱- د آرام سمندر په سواحلو کې د ګوایاګیل د خلیج په غاړه پروت دی.

۲- د چیلي هیواد خلیجونه کوارګوادو او دی پنیاس دي.

لنډ ځواب ورکړئ

۱- د پراخو او ژور و خلیجونو غاړې بندرونو جوړونې ته برابر دي.

۲- دوړلو راوړلو، د کبانو د ښکار کولو او تفریح ځایونو لپاره ترې ګټه اخیستل کیږي.

## د پنځه ویشتم لوست د تدریس د لارښود پلان

د تدریس وخت– دوه درسي ساعتونه

| سر لیکونه | د مطلبونو تشریح | |
|---|---|---|
| ۱– د درس موضوع | د امریکا د لویې وچې اقلیم | |
| ۲– د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې | زده کوونکي باید د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>هر اړخیزه موخه:<br>د امریکا د لویې وچې د اقلیم له ډولونو سره اشنا کیدل.<br>جزیې موخې:<br>– د امریکا پر لویې وچې د اغیزمنو اقلیمي عواملو پیژندل.<br>– د امریکا د ډیرو لمدو او وچو سیمو پیژندل.<br>– د اقلیمې جغرافیې د نقشې له مخې د مختلفو اقلیمونو پیداکول.<br>– د اقلیمې نقشې پر مخ د امریکا د بیلابیلو اقلیمونو جلا کول.<br>– د بې لیکنې نقشې بشپړول.<br>– د داسې اقلیمونو د پیدا کول له کبله د لوی خدای نه د شکر، قدردانۍ او مینی اظهار کول. | |
| ۳– د زده کړې دلاروچارو (میتودونه) وړاندیزونه | تشریح ورکول، ډله ییز بحث، پوښتنې او ځوابونه، لوستل او توضیح کول | |
| ۴– د زده کړې مرستندویه توکي | اقلیمي نقشه، بې لیکنې نقشه، د لوست کتاب، د ښوونکو د لارښود کتاب، توره دړه او تباشیر | |
| ۵– ارزونه | شفاهي، لیکلي او عملي کار | |
| ۶– په ټولګي کې د درس ورکولو فعالیتونه | پیلوونکي فعالیتونه: په مروجه طریقه ټولګي ته ننوتل، (سلام او روغبړ کول) د ټولګي تنظیمول، حاضري اخیستل، دتیر لوست ارزونه او د زده کوونکو په واسطه له ټولګي څخه د بهر فعالیت وړاندې کول.<br>هڅوونکي فعالیتونه: د ټولګي مخ ته د اقلیمي نقشې ځړول، په توره دړه دسرلیک لیکل، د نقشې پر مخ طبیعي جوړښتونوته د زده کوونکو پام راګرځول.<br>هڅوونکې پوښتنه: د نړۍ په کومه لویه وچه کې د نړۍ ټول نباتات، حیوانات او اقلیمونه شته؟ | وخت<br>۵ دقیقې<br>۵ دقیقې |

| وخت | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | ۷- د ښوونکي درسي فعالیتونه ( د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) |
|---|---|---|
| ۳۵ دقیقې | زده کوونکي په چوپه خوله نوی لوست لولي او ستونزمن اصطلاحاتو پوښتنه کوي.<br><br><br>زده کوونکي ځیر وي او هغه څه چې نه پوهیږي پوښتنه کوي<br>۱- په شمالي امریکا کې دراکی غرونه او په جنوبي امریکا کې د اندیز غرونو ددې لویې وچې په لویدیځ کی موقعیت لري.<br>۲- د لابرا دور سوړ بهیر په شمال کې د پیروسوړ بهیر په جنوب لویدیځ کې د ګلف ستریم تود بهیر په ختیځ کې او د کورشیو تود بهیر په لویدیځ کې.<br>۳- په ختیځ کې د اتلانتیک ساحلي سیمې او په لویدیځ کې د ارام د سمندر تر غاړی سیمې.<br>۴- په استوایي اقلیمي سیمو کې.<br>۵- د ارام سمند له لوري د مرطوبو کتلو د ورتګ خنډګرځي.<br>زده کوونکي په ډلو کې تنظیم کیږي او د ورکړشو اصطلاحاتو باندی بحث کوي او بحث پایلې ټولګیوالوته وایې.<br>ځواب ورکوي | ● د پیلوونکي مرحلې له تطبیق وروسته په چوپه خوله د نوي لوست د لوستلو او ستونزمنو کلمو د پوښتنې کولو لارښوونه کوي.<br>● د پوښتنو له ځواب ورکولو وروسته د امریکا د لویې وچې په نقشه کې د زده کوونکو پام ددې لویې وچې اوږدوالي ته را اړوي، چې له شمال څخه جنوب لورته غزېدلې ده او د سمندرنو تر منځ موقعیت لري او د غرونو دلړیو شتوالي ته او همدارنګه د استوا، سرطان او جدی کرښو او شمالي او جنوبي قطبی دایروته د هغوی پام را ګرځوي او د زده کوونکو څخه پوښتنې کوي.<br>۱- ډیر لوړ غرونه ددې لویې وچې په کومه خوا کې موقعیت لري؟<br>۲- د اوبو کوم تاوده او ساړه بهیرونه ددې لویې وچې پر اقلیم اغیزه کوي؟<br>۳- ددې لویې وچې ډیرې لمدې سیمې کومې دي؟<br>۴- د جنوبي امریکا زیاتې برخې په کومې اقلیمي سیمه کې واقع شوي دي؟<br>۵- د اندیز او راکې د غرونو شتوالی ددې لویې وچې پر اقلیم څه اغیزه لري؟<br>● ښوونکی دې درس راټول او خلص کړي.<br>● زده کوونکي دې په ډلو کې تنظیم کړي او فعالیت د سرته رسولو او د ځوابونو د پیداکولو لپاره دې د نقشې په مرسته لارښوونه وکړي.<br>● د ارزوني لپاره د لوست له ورو ستنیو پوښتنو څخه ګټه اخلي.<br>● له ټولګي څخه د بهر فعالیت لارښوونه دې وکړي. |

**۸- د هڅوونکو او د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱- د امریکا لویه وچه د نړۍ د ټولو نباتاتو، حیواناتو او اقلیمونو لرونکې ده.

۲- د شمالي امریکا زیاته برخه په قطبي، معتدله او لږه برخه یې د استوا لاندې (په منځنۍ امریکا کې)پرته ده.

۳- د جنوبي امریکا زیاته برخه په استوایي حاره سیمه کې اوجنوبي لږه برخه یې په معتدله سیمه کې پرته ده.

د لوست د وروستنیو پوښتنو ځوابونه

صحیح ځواب غوره کړئ.

۱-صحیح، ۲- غلط

لنډ ځواب ورکړئ

۱- ګلف ستریم، کوروشیو، برازیل، لابرادور، پیرو او بنګوئلا بهیرونه.

۲- د راکي او اندیز غرونه

**۹- د ښوونکو لپاره اضافي معلومات**

د مرګ دره: د امریکا د متحدو ایالتونو د کلفورنیا او نوادا په ایالتونو کې وچه صحرا ده چې د سمندر د اوبو له مخ څخه ۸٦ متره ژور ه پرته ده او د شمالي امریکا ډیره توده سیمه ده.

**سمندري بهیرونه ocean current**

د سمندرونو د سطحې د اوبو حرکت د مختلفو د لیلونو په منځ کې ډیر مهم یې بادونه، د تودوخې توپیر او په اوبو کې د مالګې اندازه ده او د ځینې بهیرونو د لوري بدلون د ځمکې وضعي حرکت اغیزه ده، د بهیرونو هغه ډله چې د بادونو له امله منځته راغلې، یو هم ګلف ستریم بهیر دی، چې په شمالي نیمه کره کې د معتدله او استوایي سیمو تر منځ د ګړۍ د حرکت په استقامت او په جنوبي نیمه کره کې دګړۍ د حرکت مخالف حرکت کوي.

د سوداګریزو بادونو جریان د لویدیځ په لوري د استوایي تودو اوبو بهیر منځته راوړي، دا بهیر د برازیل ساحل ته مخامخ په دوه برخو ویشل کېږي، چې شمالي بهیر یې ګلف ستریم بهیر تشکیلوي چې په لومړیو کې دا بهیر د امریکا د متحدو ایالتونو د ختیځو غاړو په خوا حرکت کوي او د لابرادور له سوړ بهیر سره دنیوفاوند لندته مخامخ یوځای کیږی له غبار او لړو څخه ډکه فضا جوړوي او د شمالي اتلانتیک په بهیر بدلیږي، د لویدیځو بادونو د اغیزې له امله د اروپا په لوري حرکت کوي او په دوه څانګو ویشل کېږي، یوه څانګه یې د اروپا شمال لویدیځ ته رسیږي او بله څانګه یې سړیږي او په اوبو کې کښته ځي د سمندر د کښتني بهیر په توګه د استوا په لورې درومی او وروسته د سمندر مخ ته راپورته کېږي.

د ارام (پسفیک) سمندر تود بهیر د کورشیو kuroshi په نوم یاد شوی دي.

- د مدیترانې د سمندرګې د اوبو د مالګې د اندازې توپیر له امله د اتلانتیک د سمندر د اوبو د سطحی بهیر د مدیترانی سمندرګي ته ننوځي. د مدیترانې د سمندرګي او به دلږ اوربښت، د اوبو ډیر براس او د سیندونو د لږو اوبو له امله چې په هغه کې تویيږي د سمندر د اوبو په پرتله زیاته مالګه لري.

د تود او سوړ بهیر اصطلاح د بهیر تودوخه د هغو د شاوخوا او بو په پرتله ده.

د اقلیمونو ډولونه د لوست د کتاب په وروستۍ برخه کې د اصطلاحاتو د سرلیک لاندې توضیح شوي دي.

## د شپږ ویشتم لوست د تدریس د لارښود پلان

د تدریس وخت: یو درسي ساعت

| سر لیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱- د درس موضوع | **د امریکا سیاسي جغرافیه** | |
| ۲- د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې | زده کوونکي باید د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>هر اړخیزه موخه:<br>د امریکا د لویې وچې له سیاسي جغرافیې سره اشنا کیدل.<br>جزیې موخې:<br>– د انګلو ساکسون د هیوادونو د حکومتونو د بڼو (سیستم) پیژندل.<br>– د لاتیني امریکا د هیوادونو پیژندل.<br>– په امریکا کې د انګلیستان د همګټو هیوادونو له اداری چارو سره اشنا کیدل.<br>– په نقشې کې د دوه بیلو فرهنګونو انګلو ساکسون او لاتین د جغرافیایي منطقو ښودل.<br>– د امریکا د لویې وچې له سیاسي نقشې څخه د ګټې اخیستنې توان پیدا کړي. | |
| ۳- د زده کړې د لاروچارو (میتودونو) وړاندیزونه | تشریح کول، لوستل، پوښتنې، ځوابونه او ډله ییزه فعالیت | |
| ۴- د زده کړې مرستندویه توکي | د امریکا سیاسي نقشه، د لوست کتاب، د ښوونکو د لارښود کتاب، توره دړه او تباشیر | |
| ۵- ارزونه | شفاهي، لیکلی او د ټولګي څخه بهر فعالیت | |
| ۶- په ټولګي کې د درس ورکولو فعالیتونه | پیلوونکي فعالیتونه: ټولګي ته په مروجه طریقه ننوتل (سلام او روغبړ کول) د ټولګي تنظیمول، حاضري اخیستل، د تیر لوست ارزونه د زده کوونکو پواسطه له ټولګي څخه د بهر فعالیت وړاندې کول.<br>هڅوونکي فعالیتونه: د ټولګي مخ ته د امریکا د سیاسي نقشې ځړول، په توره دړه د سرلیک لیکل.<br>هڅوونکې پوښتنه: د امریکا په لویه وچه کې څو هیوادونه شته او څه ډول سیاسي نظام لري؟ | وخت<br>۵ دقیقې<br>۵ دقیقې |

| وخت | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | ۷– د ښوونکي درسي فعالیتونه ( د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) |
|---|---|---|
| ۳۵ دقیقې | زده کوونکي ځواب ورکوي.<br><br>– په چوپه خوله نوی لوست لولي او هغه څه چې پرې نه پوهیږي پوښتنه کوي.<br>زده کوونکي ځیروی او هغه څه چې نه پوهیږي پوښتنه کوي.<br><br>زده کوونکي په ډلو ویشل کېږي او دنقشې لــه مخې دهغې لویې وچې د حکومتونو د ډولونو په هکله بحث کوي او پایلې یــې ټولګیوالــو تــه بیانوي.<br><br>زده کوونکي ځوابونه ورکوي. | ● د پیلوونکې مرحلې له تطبیق څخه وروســته هڅــوونکې پوښتنه طرحه کوي .<br>● په چوپه خوله د نوي لوســت لوســتل او د ســتونزمنو کلماتو د پوښتنې کولو لارښوونه کوي.<br>● د متن ستونزمنو اصطلاحاتو ته ځواب وایي<br>● د نوي درس تشریح کوي او د زده کوونکو پوښتنو تــه ځواب وایي.<br>● د لاتینې امریکا د هیوادونو حکومتي نظام او د همګټــو هیوادونو اصطلاح توضیح کوي.<br>● د ټولګي د ننه فعالیت لپاره زده کوونکي په ډلو ویشي او له هغو څخه غواړي چې د امریکا په لویه و چه کې د نقشې له مخې د حکومتونو د ډولونو په هکله سره بحث وکړي.<br>● د ډله ییز فعالیت پایلې د خپلو معلوماتو له مخې خلاصــه کوي.<br>● د ارزوني لپاره د لوست ورستنۍ پوښتنې طرح کوي.<br>● په اخیر کې درس خلاصه کوي او لــه ټــولګي د بهــر فعالیت لارښوونه کوي |

**۸– د هڅوونکې پوښتې ځواب**

د امریکا په لویه وچه کې ۵۱سیاسي واحدونه شته؛ چې د هغو له جملې څخه ۳۵ واحده خپلواکه هیوادونه دي.

د لوست د ورستنیو پوښتنو ځوابونه:

الف– په شمالي امریکا کې دوه هیوادونه د امریکا متحده ایالتونه او کانادا موقعیت لري.

ب– په منځنۍ امریکا کې د مکسیکو، نیکاراګوا او نور هیوادونه شته دي.

ج– په جنوبي امریکا کې د اکوادور، برازیل، ارجنتاین او نور هیوادونه هم شته دي.

۲– په جنوبي امریکا کې مهمه ګډه فرهنګی وجه یې ګډه ژبه، مذهب (کاتولیک)، او فرهنګ دی او علت یــې دادی چې زیاتره مهاجرین یې هم له جنوبي اروپا څخه دي.

۳– د امریکا د متحدو ایالتونو هیواد د ۵۰ ایالتونو څخه جوړ شوي دي او د حکومت ډول یې فدرالي جمهوریت دی.

**د ښوونکو لپاره اضافي معلومات**

**فدارسيون**

**فدراسيون federation د څو هيوادونو او ايا لتونو د يووالي لپاره استعماليږي. د لاتيني ژبې ريښه لري او دfeederatus له کلمي څخه اخيستل شوې ده، چې معنا يې (يوځاي شوي) دی.**

**فدرال د څو سياسي واحدونو (د هيواد ايالتونه) يو والې او د يوه دولت جوړولو ته وايې دا سياسي واحدونه دمحدود واک لرونکي وي، دفاعي، بهرنيو چارو او د پيسو د خپرولو واک د مرکزي حکومت (فدريشن) سره وي، اساسي قانون د ايالتونو واکونه ټاکي او هم د فدرالي دولت د نظارت دواکونو حدود واضح کوي، د امريکا متحده ايالتونه، کانادا، هند او پاکستان......... فدرالي دولتونه دي.**

**په فدرالي هيواد کې هر ايالت مقننه قوه او خپلواک مجلس لري خو د هغو قوانين بايد د فدرالي (مرکزی حکومت) له قوانينو سره مخالف نه وي.**

## اوه ویشتم لوست د تدریس د لاربنود پلان

**د تدریس وخت: دوه درسي ساعتونه**

| سر لیکونه | د مطلبو شرح | وخت |
|---|---|---|
| **۱- د درس موضوع** | **د امریکا د لویې وچې د بشري جغرافیې په هکله څه پوهیږئ؟** | |
| **۲- د زده کړې ( پوهنیزې، مهــارتي او ذهنیتي) موخې** | زده کوونکي باید د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>هر اړخیزه موخه<br>د امریکا د لویې وچې له بشري جغرافیې سره اشنا شي .<br>جزیې موخې<br>- د امریکا لویې وچې له نژادونو سره شنا کیدل.<br>- د امریکا د لویې وچې ته د نورو لویو وچو څخه د نژادونــو د ورتګ په علت پوهیدل.<br>- د امریکا د ژبو له ډولونو سره اشنا کیدل.<br>- په دی پوهیدل چې تورپوستکي په امریکا کې تر کومو شرایطو لاندې ژوند کوي.<br>- د امریکا په لویه وچه کې د اوسیدونکو نژادونو نومونه واخلي.<br>- د امریکا د تورپوستکو اصلي ټاټوبی او دې لویې وچې ته یې د ورتګ علتونه بیان کړي. | |
| **۳- د زده کــــړې د لاروچــــارو (میتودونو) وړاندیزونه** | تشریح کول، لوستل، توضیح کول، ډلهییز بحث، پوښتنې او ځوابونه او عملي کار. | |
| **۴- د زده کړې مرستندویه توکي** | د امریکا د لویې وچې نژادي نقشه، د ډول ډول نژادونو انځورونــه او عکسونه، د لوست د کتاب نقشې او انځورونه. | |
| **۵- ارزونه** | شفاهي، لیکلي او عملي کار | |
| **٦- په ټولګي کې د درس ورکولو فعالیتونه** | **پیلوونکي فعالیتونه:** ټولګي ته په مروجــه طریقــه ننوتــل (ســلام او روغبړکول) د ټولګي تنظیم، حاضري اخیستل، د تیر لوست ارزونــه، د زده کوونکو لخوا له ټولګي څخه د بهر فعالیت وړاندي کول.<br>**هڅوونکي فعالیتونه:** په توره دړه د سرلیک لیکل، د ټولګي مــخ تــه د انځورونو او نقشې ځړول.<br>**هڅوونکې پوښتنه:** د امریکا په لویه وچه کې کوم نژادونــه اســتوګنه کوي؟ | وخت<br>۵ دقیقې<br>۵ دقیقې |

| وخت | د زده کوونکي د زده کړې فعالیت | - د ښوونکي درسي فعالیتونه (د مفاهیمو زده کـړه او ارزونه) |
|---|---|---|
| ۳۵ دقیقې | • پوښتنې ته ځواب ورکوي.<br><br>• د کتاب نقشې او تصویرونو تــه ځیــر کېږي.<br><br>• په چوپه خوله لوست لولي او هغه څه چې نه پوهېږي پوښتنه یې کوي.<br><br>• د مهمو ټکو تشریح ته غوږ نیسي.<br><br>• زده کوونکی په ډلو ویــشل کېــږي، د پوښتنو په هکله په خپل منځ کــې بحــث کوي او د بحث پایلي ټولګیوالو ته وایي.<br><br>• د پوښتنو ځوابونه وایي. | • په توره دړه د سرلیک لیکل او د هڅــوونکي پوښــتني طرح کول.<br>•په پیل کې د زده کوونکو پام د کتــاب انځورونــو او نقشو ته واړه وئ.<br>•په چوپه خوله د نوي لوست لوستلو او ستونزمنو کلمــو په نښه کولو لارښوونه وکړي.<br>•د پوښتنو ځوابونه وایي.<br>•په توره دړه د لوست اساسي ټکي لکه بومیــان( ســره پوستکي)، سپین پوستکي او تور پوستکي ولیکئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چي په اړوند یــې خپــل معلومات بیان کړي.<br>•د هر یو ځواب د خپلو معلوماتو سره یوځاي خلاصه او توضیح کړئ.<br>•په توره دړه د امریکا د لویې وچــې د دوو فرهنګونــو نومونه ولیکئ او توضیح یې کړئ.<br>•ټولګی په ډلوو ویشئ.<br>•له ډلییز فعالیت څخه څارنه وکړي او ځوابونه تــصحیح کړئ.<br>• فعالیت پایلې د خپلو معلوماتو له مخې خلاصه کړي.<br>• د پوهې د ارزونې په موخه د لوست ورستنۍ پوښــتنې وکړئ.<br>•له ټولګي څخه د بهر(کورني) فعالیت لارښوونه وکړي |

**۸- د هڅوونکي پوښتنې ځواب:** د امریکا لویه وچه د سروپوستکو (اصلی اوسیدونکو)، سپین پوستکو او تور پوســتکو څخه جوړه شوې ده.

• د امریکا په لویه وچه کې دوه فرهنګه انګلوساکسون او لاتین رواج لري او همدارنګه په انګلیسی، فرانسوي، پرتګــالي او اسپانیوي ژبو خبرې کوي.

**د لوست د ورستنیو پوښتنو ځوابونه**

۱- د انګلوساکسون فرهنګ د کانادا او د امریکا د متحدو ایالتونو په هیوادونو کې رواج لري.

۲- په سویلي امریکا کې لاتین فرهنګ رواج لري.

۳- د امریکا په متحدو ایالتونو کې تور پوستکي د سپین پوستکو په پرتله د ژوند ښه اقتصادي شرایط نه لري.

**۹– د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

**نژادونه**

**۱– سره پوستکي:** د ژیړ پوستکو له نژاد څخه دي چې د آسیا له لویې وچې څخه د بیرنګ آبناء له لارې د امریکا لویې وچې ته راغلي دي. سره پوستکي زیاتره د امریکا په متحده ایالتونو او کانادا کې استوګنه کوي. او زیاتره یې د ژو او کبانو د ښکارکولو له لارې ژوند کوي. او دوی به پخوا د ونو د دانو او ریښو څخه هم خواړه برابرول، په کرنه بوخت وو دایمي استوګنه یې درلوده، او ځینو به یې له یوځای څخه بل ځای ته کډې هم کولې او د وحشي حیواناتو له ښکار څخه به یې تغذیه کوله.

**۲– سپین پوستکي:** د امریکا د لویې وچې زیاتره نفوس جوړوي. چې زیاتره یې د اروپا له لویې وچې څخه مهاجر شوي دي. سپین نژاد دوه ډوله (غنم رنګي او خرمايي) دي، غنم رنګه سپین نژاد په څلورونورو ډلو ویشل شوي دي چې په سویلي او منځنۍ اروپا کې استوګنه کوي. چې د امریکا لویې وچې ته یې مهاجرت کړی دی.

د ایبری ډله د کرس، ساردیني او ایتالیا د سیسل په ټاپو ګانو کې لیدل کېږي، تور ویښتان، تورې سترګې او غنم رنګه بڼه لري. ساحلی ګروپ د اطلس سمندر او مدیترانې سمندرګي په غاړو کې ژوند کوي.

**لاتین امریکا:** د سویلي او منځنۍ امریکا ټولو هیوادونو ته لاتینه امریکا وایي، ددې منطقې نوم او د خلکو د ژوند کړه وړه یې د لاتینې اروپا اسپانوي، پرتګالي او فرانسوي ملتونو د فرهنګ ښکارندوي کوي، اسپانوی ژبه ددې منطقې په ۱۸ هیوادونو کې رواج لري. فقط ددې منطقې په دوو هیوادونو (برازیل) کې په پرتګالي او په هایتي کې په فرانسوي ژبه خبرې کیږي. د لاتیني امریکا د خلکو مذهب کاتولیک، د مدیترانه یي اروپا میراث دي.

## د اته ويشتم لوست د تدريس د لاربنود پلان

**د تدريس وخت: يو درسي ساعت**

| سر ليکونه | د مطلبونو شرح | وخت |
|---|---|---|
| **۱– درس موضوع** | د امريکا د نفوسو او مذهب په هکله څه پوهيږئ؟ | |
| **۲– د زده کـــړې (پــوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي) موخې** | زده کوونکي بايد د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي.<br>هر اړخيزه موخه<br>د امريکا د لويې وچې د خلکو له نفوسو او مذهب سره اشنا شي.<br>جزيې موخې:<br>– د امريکا د لويې وچې له مختلفو خلکو او مذهبونو سره اشـــنا کيدل.<br>– د شمالي او سويلي امريکا د نفوسو په ودی پوهيدل.<br>– د امريکا د لويې وچې په بيلو بيلو برخو کې د نفوســـو د ودې توپيرونه بيان کړي.<br>– د امريکا د متحده ايالتونو د مهمو او له نفوسو ډکـــو ښــــارونو نومونه واخلي.<br>– د نيويارک، ارجنتاين، بونس ايرس، ساو پائولو ښارونه په نقشه کې وښايي. | |
| **۳– د زده کړې د لاروچـــارو (ميتودونه) وړانديزونه.** | تشريح کول، لوستل، توضيح کول، ډله ييز فعاليت، بحث، پوښـــتنې او ځوابونه | |
| **۴– د زده کـــړې مرســـتندويه توکي** | د نفوسو د ويش نقشه، د امريکا د لويې وچې د مـــذهبونو نقـــشه، لـــه نفوسو ډکو ښارونو انځورونه، د کتاب نقشې او انځورونه، تـــوره دړه، تباشير | |
| **۵–ارزونه** | شفاهي، ليکلي او عملي | |
| **٦– په ټـــولگي کـــې د درس ورکولو فعاليتونه** | **پيلوونکي فعاليتونه:** په مروجه طريقه ټولگي ته ننوتل(ســـلام او روغبـــړ کول) دټولگي تنظيمول، حاضري اخيستل، د تير لوست ارزونـــه، د زده کوونکو په واسطه له ټولگي څخه د بهر فعاليت وړاندی کول.<br>**هڅوونکي فعاليتونه:** په توره دړه د سرليک ليکل، ټولگي مخ ته د امريکا د نفوسو او مذهبونو نقشې ځړول، د امريکا د ځينو مهمو او له نفوســـو ډکو ښارونو د انځورونو ځړول.<br>هڅوونکې پوښتنه: د امريکا د لويې وچې له نفوسو ډک ښـــارونه کـــوم دي؟ | وخت<br>۵ دقيقې<br><br>۵ دقيقې |

| - د ښونکي درسي فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کونکي د زده کړې فعالیت | وخت |
|---|---|---|
| ● په توره دړه د سرلیک لیکل او هڅوونکې پوښــتنې طــرح کول.<br>● په پیل کې د زده کوونکو پام د کتاب انځورونو او نقشو اویا په ټولگي کې د درس اړوندو نقشو ته را اړول.<br>● په چوپه خوله د نوي لوست لوستل او ستونزمنو کلمو په نښه کولو لارښوونه کوي.<br>● ستونزمن کلمات توضیح کوي.<br>● په توره دړه د لوست د مهمو ټکو لیکل.<br>● د نوي لوست تشریح کول.<br>● ټولگی په ډلو ویشي او د فعالیت موضوع ورپه گوته کوي.<br>● د ډلو څارنه او لارښوونه کوي.<br>● د ارزونې په موخه د لوست وروستنۍ پوښتنې طرح کوي.<br>● له ټولگي څخه بهر فعالیت لارښوونه کوي. | ● پوښتنې ته ځواب وایې<br>● د کتاب نقشو او انځورونو ته ځیــر کېږي.<br>● په چوپه خوله نوی لوســت لــولي او ستونزمنو کلمو پوښتنې کوي.<br>● د ښوونکی تشریح ته ځیر وي.<br>● په ډلو کې تنظیم کېږي او هر ډلــه د نفوسو له نقشې څخه په گټې اخیستنی د امریکا د لویې وچې په بې لیکنې نقــشه کې د لویو ښارونو د موقعیــت ټاکنــه کوي.<br>● د بحث پایلې ټولگیوالو ته وایې.<br>● د پوښتنو ځوابونه وایې. | ۳۵دقیقې |

**۸- د هڅوونکې پوښتنې ځواب:** د امریکا د لویې وچې مهم ښارونه نیویارک، بوئنوس ایریس و سان پائولودي.

**د لوست د ورستنیو پوښتنو ځوابونه**

۱- تور پوستکي زیاتره په لویو ښارونو لکه نیویارک او شیکا گو کې استوگنه کوي.

۲- د نفوسو وده په سویلي او منځنۍ امریکا کې د شمالي امریکا په پرتله زیاته ده.

۳- د شمالي امریکا خلک زیاتره د پروتستانت د مذهب پیروان دي.



## د نهه ويشتم لوست د تدريس د لارښود پلان

**د تدريس وخت: دوه درسي ساعتونه**

| سرليکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| **۱- د درس موضوع** | د امريکا دلويې وچې د اقتصادي جغرافيې په هکله څه پوهيږئ؟ | |
| **۲- درسي (پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي) موخې** | زده کوونکي بايد د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي.<br>هر اړخيزه موخه:<br>- د امريکا دلويې وچې له اقتصادي ځانګړتياوو سره اشنا شي.<br>جزيې موخې:<br>- دشمالي امريکا د اقتصادي پراختيا او پر مختيا د علتونو پيژندل.<br>- د شمالي امريکا له کاني زيرموسره آشنا کيدل.<br>- د شمالي امريکا د کرنې او مالدارۍ له محصولاتو سره آشنا کيدل.<br>- هغه عوامل چې د شمالي امريکا د اقتصادي پر مختګ سبب شوي بيان کړي.<br>- د څو کرنيزو محصولاتو نومونه واخلي.<br>- د شمالي امريکا کاني زيرمې د نقشې پر مخ وښيي.<br>- د شمالي امريکا او سويلي امريکا اقتصادي وده سره پرتله کړي. | |
| **۳- د زده کړې د لارو چــارو (ميتودونه) وړانديزونه** | تشريح کول، لوستل، توضيح کول، مباحثه، پوښتنې او ځوابونه او عملي کار | |
| **۴- د زده کړې مرستندويه توکي** | د امريکا د لويې وچې اقتصادي نقــشه، د امريکـــا د صـــنعتي او کرنيـــز محصولاتو انځورونه، توره دړه، درسي کتاب او د هغې نقشې او انځورونه. | |
| **۵- ارزونه** | شفاهي، ليکلي او عملي کار | |
| **۶- په ټــولګي کــې د درس ورکولو فعاليتونه** | **پيلوونکي فعاليتونه:** په مروجه طريقه ټولګي ته ننوتل(سلام او روغبړ کـــول) دټولګي تنظيمول، د تير لوست ارزونه او د زده کوونکو پواسطه له ټـــولګي څخه د بهر فعاليت وړاندې کول.<br>**هڅوونکي فعاليت:** په توره دړه د سرليک ليکنه او د ټولګي مخـــې تـــه د امريکا د لويې وچې اقتصادي نقشه او د شمالي امريکاد صنعتي او کرنيـــزو توليدي توکو انځورونو ځړول.<br>**هڅوونکې پوښتنه:** کوم عوامل د شمالي امريکا د اقتصادي پر مختګ سبب شوي دي؟ | ۵ دقيقې<br>۵ دقيقې |

| ۷– د ښوونکي درسي فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| • په توره دړه د سرلیک لیکل او هڅونکې پوښتنې طرح کول<br>• په پایله کې له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د امریکا د لویې وچې شمالي، منځنۍ او سویلي برخې او د هغو څو هیوادونو د نقشې پر مخ وښایې او په خپله دې د امریکا د لویې وچې اقتصادي توپیرونه په ګوته کړي.<br>• په چوپه خوله د نوي لوست لوستل او ستونزمنو کلمو په نښه کول.<br>• د پوښتنو ځوابونه وایې.<br>• د زده کوونکو پام د کتاب د ننه اقتصادي نقشې ته را اړوي چې د څو کرنیزو محصولاتو او کاني زیرمو نومونه واخلي.<br>• په توره دړه د لوست د مهمو ټکو لکه کرنه، مالداري، صنایع، کانونه او د امریکا د متحدو ایالتونو او کانادا د پر مختګ عوامل لیکي او تشریح کوي.<br>• ټولګي په ډلو وویشئ تر څو په ټاکلي موضوع بحث وکړي.<br>• د بحث پایلې د خپلو معلوماتو له مخې راټولې او خلاصه کړي.<br>• د ارزونې په موخه د لوست ورستنۍ پوښتنې طرح کړئ.<br>• له ټولګي څخه د بهر فعالیت لاربښوونه وکړئ. | • پوښتنې ته ځواب ورکوي.<br>• د کتاب اوټولګي نقشې او انځورونو ته ځیر کېږي.<br>• پر اقتصادي نقشې کار کوي.<br>• په چوپه خوله نوی لوست لولي او هغه څه چې پرې نه پوهیږي، پوښتنه یې کوي.<br>• د کتاب نقشې او انځورونو ته ځیر کېږي، د څو کرنیزو او کاني توکو نومونه اخلي.<br>• د درس تشریح ته غوږ نیسي او مهم ټکي یې لیکي.<br>• په ډلو ویشل کېږي او هره ډله په مشوره سره طبیعي او بشري عوامل په جدول کې لیکي او ټولګیوالوته یې بیانوي.<br>• د پوښتنو ځوابونه وایې. | ۳۵ دقیقې |

**۸– د هڅوونکې پوښتنې ځواب:** شمالي امریکا طبیعي سرشاره زیرمې، د اوبو ډک سیندونه ډول ډول آب و هوا لري. همدارنګه دې لویې وچې ته د اروپایانو مهاجرتونه، ددوهمې نړیوالې جګړې لـه ډګـر څخـه لیریـوالی، د اروپـایي متخصصینو ورتګ ددې لویې وچې د پر مختګ سبب شوي دي.

د درس د ورستنیو پوښتنو ځوابونه

۱– غنم اوجوار

۲– د فلزاتو تولید، د کرنیزو ماشین الاتو تولید، د وسلې تولید، د موټرونو تولید او داسې نور.

۳– نفت، د ډبرو سکاره، سره زر، سپین زر، مس، نکل او داسې نور.

۴– د شمالي امریکا د صنایعو په هکله معلومات لیکل.

**۹- د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

د شمالي امریکا هیوادونه د نړۍ ډیر بډاي هیوادونه دي، ددې هیوادونو اقتصادي اعتبار دومره زیات دی چې ویې کولای شول له ۱۹۴۵ کال څخه وروسته چې دوهمه نړیواله جګړه پای ته ورسیده، د هغه لوي اقتصادي بحران چې سویلي او لویدیځه اروپایې تهدید وله، مخ نیوي وکړي.

ددی هیوادونو د تولیدي قوت، پانګې اوډیرې سرمایې په مقابل کې د انګلیس، المان، فرانسې او ایتالیې هیوادونه نا توانه دي.

ددې هیوادونو د اقتصادي چټک پر مختګ د پوهیدلو لپاره لاندې ټکي باید په پام کې ونیسو.

ددې لویې وچې پراخوالی، په معتدله اقلیمي منطقه کې موقعیت او دنا اواریو څرنګوالی یې هم داسې دی چې د استوګنې لپاره برابری دي.

په دې منطقه کې د کرنې او صنایعو د پرمختګ لپاره ټول پورتني عوامل شتون لري، پنبه ددې سیمې یو د غوره محصولاتو څخه ده. د وریجو کرنه په ځینو ساحلي سیمو کې رواج لري. دلته وریجې په پر مختللي میتودونو کرل او راټولیږي.

شمالي امریکا سره له دی چې کرنیزه سیمه ده د صنعتي مهمو سیمو څخه هم ده، لکه چې یادونه یې وشوه د لارو دلیږد او رالیږد وسایلو، کرنې او د تولیدي لومړنیو توکو د لرلو په سبب یې صنعت هم پر مختګ کړی دی.

د اوسپنې او د ډبرو سکرو د کانونو ته اسانه لاس رسی په دې منطقه کې د صنعت د پر مختګ بل دلیل دی. په دې لویه وچه کې د ځمکې سطحې ته نږدې د اوسپنو دلویو کانونو زیرمې شتون لري چې د را ایستنې وروسته، د اوبو د لارو پواسطه د تولید مرکزونو ته وړل کیږي او په ماشین الاتو بدلیږي. د تولید څخه ورسته بیا هم زیاتره یې د همدی لارو پواسطه د هیواد په د ننه او بهر کې توزیع کیږي.

## د دیرشم لوست د تدریس د لارښود پلان

**د تدریس وخت: دوه درسي ساعتونه**

| وخت | د مطلبونو شرح | سرلیکونه |
|---|---|---|
| | د لاتینې امریکا د اقتصادي جغرافیې په هکله څه پوهیږئ | **۱- د درس موضوع** |
| | زده کوونکي باید د درس په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>هر اړخیزه موخه:<br>د لاتینې امریکا له اقتصاد سره اشنا کیدل<br>جزیې موخې<br>- د لاتینې امریکا د څو کرنیزو محصولاتو نومونه واخلي.<br>- په نقشه کې د کرنیزو محصولاتو تولیدي سیمې وښیي.<br>- د شمالي امریکا او لاتینې امریکا اقتصاد سره پرتله کړي.<br>- د لاتینې امریکا له صنایعو او کانونو سره اشناشي. | **۲- درسي (پوهنیزې، مهـــارتي او ذهنیتي) موخې** |
| | تشریح کول، لوستل، توضیح کول، ډله ییز کار او پوښتنې او ځوابونه | **۳- د زده کــــړې د لاروچــــارو (میتودونه) وړاندیزونه** |
| | د امریکا د لویې وچې اقتصادي نقشه، دصنعتي او کرنیزو محـــصولاتو انځورونه، توره دړه، تباشیر، د لوست د کتاب نقشې او انځورونه | **۴- د زده کړې مرستندویه توکي** |
| | شفاهي، لیکلي او عملي کار | **۵- ارزونه** |
| ۵ دقیقې<br><br><br><br><br>۵ دقیقې | **پیلوونکي فعالیتونه:** په مروجه طریقه ټولګي ته ننوتل(سلام او روغبـــړ کول) د ټولګي تنظیمول، د تیر لوســـت ارزونـــه او د زده کوونکـــو پواسطه له ټولګي څخه د بهر فعالیت وړاندې کول.<br>**هڅوونکی فعالیت:** په توره دړه د سرلیک لیکنه او د ټولګي مخ ته د امریکا د لویې وچې اقتصادي نقشه او د شمالي امریکـــاد صـــنعتي او کرنیزو تولیدي توکو انځورونو ځړول.<br>**هڅوونکې پوښتنه:** د لاتیني امریکا اقتصاد پر کومو بنسټونو ولاړ دی؟ | ٦- په ټولګي کې د درس ورکولو فعالیتونه |

| ۷– د ښوونکو درسي فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| ● په توره دړه د سرلیک لیکل او هڅوونکې پوښتنې طرح کول<br>● لومړی د زده کوونکو پام د کتاب نقشې او انځورونـــو تـــه را واړوئ.<br>● په چوپه خوله د نوي لوست لوستل او د ستونزمنو کلمو په نښه کولو توصیه وکړئ.<br>● د لغاتونو او اصطلاحاتو توضیح و کړئ .<br>● د درس مهم ټکي لکه د لاتیني امریکا کرنه، مالداري، صـــنایع او کانونه په توره دړه ولیکئ او توضیح یې کړئ او همدارنګه د شمالي امریکا او له لاتیني امریکا اقتصاد سره پر تله کړئ.<br>● ټولګی په ډلوو ویشئ او د بحث موضوع یې وټاکي.<br>● د ډلو دفعالیت څارنه او لارښوونه وکړئ.<br>● د ډله ییز فعالیت پایلې د خپلو معلوماتو سره خلاصه کړئ.<br>● د لوست ورستنۍ پوښتني طرح کړئ.<br>● د ټولګي څخه د بهر فعالیت لارښوونه وکړئ | ● پوښتنی ته ځواب ورکوي<br>● نقشو او انځورونو ته ځیر کیږي<br>● نوي لوست په چوپه خوله لولي او هغه څه چې نه پوهیږي پوښتنه یې کوي.<br>● د ښوونکی تشریح ته ځیـــر وي او د لوست د مهمو ټکو پوښتنه کوي.<br>● په ډلو کې تنظـــیم کیـــږي د شـــمالي امریکا اقتصاد له لاتیني امریکا ســـره د کرنې، مالدارۍ او صنایعو له پلوه پرتله کوي.<br>● د بحث پایلي ټولګیوالوته بیانوي.<br>● ځوابونه وایې. | ۳۵ دقیقې |

**۸– د هڅوونکې پوښتنې ځواب:** د لاتیني امریکا اقتصاد په کرنې او د کاني لومړنیو توکو په رایستنې ولاړ دی.

– د لوست د ورستنیو پوښتنو ځوابونه

۱– د جنوبي امریکا اقتصاد زیاتره به کرنیزو محصولاتو ولاړ دی.

۲– د ارجنتاین هیواد د غنمو او جوارو صادرونکی او د برازیل هیواد د نړۍ د قهوې صادرونکي دی.

۳– د شنو او پراخو دښتود درلودلو په سبب د رمو او غوایانو ساتنه ډیر رواج لري.

۴– د جنوبي امریکا مهم کانونه نفت، سره زر، سپین زر، مس او اوسپینه ده

**۹- د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

د لاتيني امريکا اقتصاد ټول په طبيعي زيرمو پورې تړلی دی، په عمومي توگه ددې لويې وچې د اقتصاد بنسټ تر ځمکې لاندې زيرمې او کرنه تشکيلوي، د لاتينې امريکا د نوم مشهور يدلو علت هم د ځمکې لاندې زيرمو په سبب دی. ددې لويې وچې ځينې هيوادونه د کاني توکو له غوره توليد ونکو څخه شميرل کېږي. خو د صنعت او تخنيک د نه پر مختگ په سبب لگښتي توکي په اومه ډول صادريږي.

د لاتيني امريکا د ځينو هيوادونو کرنه په عنعنوي طريقو ترسره کېږي، ځکه په ابتدايي وسايلو قلبه کېږي او د محصولاتو را ټولول يې هم د کارگرانو پواسطه صورت مومې.

صنعت: لاتينه امريکا د تاريخ په اوږدوکې د اومو توکو توليدونکې او صادرونکې وه. زياتره فعاليتونه يې د خوړو د صنايعو د لومړنيو توکو د توليداتو په برخه کې لکه غوښه، بوره... تر سره کېږي.

کاني توکې لکه مس، سپين زر، طبيعي توکې لکه لرگي دي، د لاتيني امريکا زياتره هيوادونه ديوه محصول صادرونکي دي، برازيل د قهوې، اکوادور د کيلې او چيلي د مسو صادرونکي دی.

لاتينه امريکا سره له دې چې کولای شي د يوې صنعتي ټولينې ټولې اړتياوې پوره کړي، خو صنعت يې لاتر اوسه په لومړنۍ مرحله کې دی، سره له دې هم د برازيل، ارجنتاين او چيلي هيوادونه نسبتاً پر مختللي صنعت لري.

## د یو دیرشم لوست د تدریس د لارښود پلان

**د تدریس وخت: دوه درسي ساعتونه**

| سر لیکونه | د مطلبونو تشریح | وخت |
|---|---|---|
| ۱- د درس موضوع | مواصلات په شمالي امریکا کې | |
| ۲- د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې | زده کوونکي باید د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>هر اړخیزه موخه:<br>د شمالي امریکا له ترانسپورت سره آشنا شي.<br>جزیې موخې<br>- مواصلاتي جغرافیه تعریف کړي.<br>- د مواصلاتي لارو ارزښت توضیح کړي.<br>- د شمالي امریکا د اوبو لارې او د پرمختګ عوامل تشریح کړي.<br>- د بیړیو چلولو وړسیندونو نومونه واخلي.<br>- د هوایي لارو ارزښت توضیح کړي.<br>- د پایپ لین ترانسپورت د استعمال ځایونه بیان کړي.<br>- په مواصلاتي نقشه کې داوسپنو د کرښو ارتباطات وښیي. | |
| ۳- د زده کړې د لاروچارو (میتودونو) وړاندیزونه | تشریح کول، لوستل، پوښتنې او ځوابونه، توضیح کول او ډله ییز فعالیت | |
| ۴- د زده کړې مرستندوی توکي | د شمالي امریکا ترانسپورتي نقشه، د لوست کتاب، د ښوونکو د لارښونې کتاب | |
| ۵- ارزونه | شفاهي، لیکلي، پر نقشه کار کول، او له ټولګي څخه د بهر فعالیت | |
| ۶- په ټولګي کې د درس ورکولو فعالیت | پیلوونکي فعالیتونه: په مروجه طریقه ټولګي ته ننوتل (سلام او روغبړ کول) دټولګي تنظیمول، د تیر لوست ارزونه او د زده کوونکو پواسطه د ټولګي څخه د بهر فعالیت وړاندې کول.<br>هڅوونکي فعالیتونه: د ټولګي مخې ته د شمالي امریکا د ترانسپورتی نقشې ځړول، په توره دړه د سرلیک لیکل.<br>هڅوونکې پوښتنه: ستا سو له نظره د شمالي امریکا د مواصلاتي لارو اهمیت په څه کې دی؟ | ۵ دقیقې<br><br>۵ دقیقې |

| وخت | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | – د ښونکي درسي فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) |
|---|---|---|
| ۳۵ دقیقې | – په چوپه خوله نوی لوست لولي او هغه څه چې پرې نه پوهیږي پوښتنه یې کوي.<br><br>– د ښوونکي تشریح ته ځیروي او هغه څه چې پرې نه پوهیږي پوښتنه کوي.<br><br>– زده کوونکي په ډلو کې تنظیم کېږي او په ډلو کې پر نقشه کار او بحث کوي او هغه څه چې پرې نه پوهیږي له ښوونکي څخه پوښتنه کوي او د بحث پایلي ټولګیوالو ته وایې.<br>ځوابونه ورکوي. | – له پیلوونکو او هڅوونکو فعالیتونو څخه وروسته په چوپه خوله د نوي لوست د لوستلو او ستونزمنو کلمو د نښه کولو لارښوونه کوي.<br>– د پوښتنو ځوابونه ور کوي.<br>– نوي لوست تشریح کوي.<br>– د زده کوونکو پوښتنو ته ځواب وایي<br>– زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې د لوست کتاب په نقشه کې وګورئ چې د شیکا ګو صنعتي ښار د اوسپنې د کرښو په واسطه له کومو بندرونو او کومو هیوادونو سره نښتی دی.<br>● د ډله ییز فعالیت په وخت کې زده کوونکو ته لارښوونه کوي.<br>● د ډله ییز فعالیت پایلې د خپلو معلوماتو له مخې خلاصه کوي<br>● د ارزونې په موخه د لوست له وروستنیو پوښتنو څخه ګټه اخلي.<br>● درس خلاصه کوي او له ټولګي څخه د بهر فعالیت لارښوونه کوي. |

**۸- د هڅوونکې پوښتنې ځواب**

د شمالي امریکا ټول ښارونه، د کانونو د را ایستلو مرکزونه، صنعتي او لګښتي مرکزونه او د هیواد بندرونه یو له بل سره د سرکونو پواسطه نښتي دي.

**د لوست د ورستیو پوښتنو ځوابونه**

۱- مواصلاتي جغرافیه د سوداګریزو مهمو بندرونو او سیمو ترمنځ داړیکو له مطالعې څخه عبارت ده چې په دې تګ لوری باندې د سوداګریزو مالونو او مسافرینو تګ راتګ کېږي.

۲- د کانادا او مکسیکو هیوادونه د اوسپنو د کرښو پواسطه نښتې دي.

۳- د اوبو او هوایي ترانسپورت د پر مختګ سبب شوي دي.

۴- د میسي سي پي، سنت لارنس، میکنزي... سیندونه دي.

۵- هوایي ترانسپورت د با ارزښته مالونو د وړلو لپاره چې حجم یې لږ او ارزښت یې زیات وي استعمالیږي.

۶- د پایپ لین د ترانسپورت پواسطه نفت، طبیعي ګاز او نور اوبلن شیان له ضایعاتو پرته لګښتي مرکزونو ته وړل کېږي.

**۹- د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

**د شمالي امريکا ترانسپورت**

د امريکا د لويې وچې جغرافيوي موقعيت په نيمه لويديځه کره کې، د نړۍ له سوداګريزو بازارونو څخه يې زيات واټن، د صنعتي اومو توکو، صنعتي توکو او انرژۍ توليدونکو توکو د وړلو او همدارنګه د نړۍ له هيوادونـــو ســـره د ډول ډول اړيکو په سبب پرمختګ کړی دی.

د امريکا د لويې وچې په لويديځ کې د پان آمريکن pan American لويه لار د متحده ايالتونو د الاسکا له ايالت څخه د پانامې تر هيواد پورې غزيدلې ده او د شمالي امريکا هيوادونه د منځنۍ امريکا له هيوادونو سره نښلوي.

د امريکا د متحده ايالتونو نورې لوي لارې ټول بندرونه، ښارونه، ملي پارکونه، ايالتونه، توليدي او لګښتي مرکزونه يـــو د بل سره نښلوئ چې اوږوالي يې ۶۳۹۳۶۰۳ کيلو مترو ته رسيږي.او له هغې جملې څخه ۴۱۸۰۰۵۳ کيلومتره يې پخه او ۲۲۱۳۵۵ کيلو متره يې خامه ده چې خامه سړکونه يې په ځنګلونو او غرونو کې د طبيعي ښکلا د ساتلو لپاره ســـاتل شوي دي.

د شمالي امريکا د اوسپنې کرښې له اتلانتيک سمندر څخه پيل او تر پسفيک pacific (آرام) سمندر پورې غزيدلي دي. لکه د نيويارک- سانفرانسسکو، له سويل څخه شمال ته نيو اورليان- دولت Duluth ( د سوپرير جهيـــل پـــه غـــاړه)، دولت - سياټلSeattle نيو اورليان- شيکاګو، نيو اورليان - لاس انجلس- سانفراسسکو او داسې نور.

پنځګونو جهيلونو او سنت لارنس سيند د هغه ځای صنعتي مرکزونه او لوی ښارونه مستقيماً لـــه اطلـــس ســـمندر ســـره نښلوي.

د ميسی سي پي سيند د متحدو ايالتونو منځنۍ برخې د مکسيکو له خليج سره نښلوي. د متحدو ايالتونو د سمندري بيړيو شمير ۴۸۶ ته رسيږي او سربيره پر هغې په نړۍ کې د متحده ايالتونو ۶۸۰ بيړۍ د نورو هيوادونو تر بيرغ لاندی فعاليت کوي.

د بهرنيو هيوادونو ۴۹ بيړۍ د متحده ايالتونو تر بيرغ لاندې کار کوي.

د امريکا د متحده ايالتونو د سوداګرۍ د بيړيو ظرفيت څه نا څـــه ۱۳۰۰۰۰۰۰ ټنـــو او د نفتـــي ټـــانکرونو ظرفيـــت ۵۵۰۰۰۰۰ ټنو ته رسيږي.

د امريکا د متحدو ايالتونو ترانسپورتي هوايي کرښې ددې هيواد د پراخوالي او د دوه ايـــالتونو (هـــاوايي او الاســـکا) د ليريوالي او همدارنګه له نورو لويو وچو سره د اړيکو په سبب د کتنې وړ پر مختګ کړی دی، د هوايي ډګرونو شـــمير يې په ۲۰۰۴م کال کې ۱۴۸۵۷ ته رسيده.

د کانادا په هيواد کې ترانسپورتي لويه ستونزه د زياتو واوړ وشتون دی، چې بايد شپږ مياشتی منظمې پاکې شي.

د کانادا هيواد ۴۸۶۸۳ کيلومتره د اوسپنی کرښې او ۴۰۸۸۰۰ کيلو متره لوي لارې لري چـــې مـــشهوره لار يـــې د ترانس کانادا په نوم trans Canada ۷۷۷۵ کيلومتره اوږدالی لري.

د لويو بيړيو شمير يې۱۶۹ دی، سر بيره له دې د بهرنيو هيوادونو شپږ لويې بيړۍ د کانادا تـــر بيـــرغ لانـــدې او ۱۱۲ کانادايي بيړۍ د نورو هيوادونو تر بيرغ لاندې فعاليت کوي، په ۲۰۰۳م کال کې کانادا ۲۳۵۶۴۱ کيلومتره په اوږوالي د نفتو د ليږد پايپ لين او ۷۴۹۸۰ کيلومتره په اوږد والي د اوبلن ګاز د ليږد پايپ لين درلود.

**د دوه دیرشم لوست د تدریس د لارښود پلان**

**د تدریس وخت: یو درسي ساعت**

| سرلیکونه | د مطلبو شرح | وخت |
|---|---|---|
| ۱– د درس موضوع | **د جنوبي امریکا مواصلات** | |
| **۲– د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې** | زده کوونکي باید د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>هر اړخیزه موخه:<br>د جنوبي امریکا له ترانسپورت سره اشنا شي.<br>جزیې موخې:<br>– سویلي (جنوبي) امریکا د ځمکني ترانسپورت د پر مختګ په مخکی د پرتو خنډونو پوهیدل.<br>– په سویلي امریکا کې له اوسپنو د کرښو دګنه ګونې ډکو سیمو پیژندل.<br>– د سویلي امریکا د اوسپنو د کرښو او لویو لارو سره اشنا کیدل .<br>– په سویلي امریکا کې د اوبو د ترانسپورت د پر مختګ د عواملو پیژندل.<br>– د هغو عواملو پیژندل چې په جنوبي امریکا کې د هوایي ترانسپورت د پر مختګ سبب شوي دي.<br>– د سویلي امریکا ترانسپورتي ستونزې تحلیل کړای شي.<br>– د سویلي امریکا له ترانسپورتي نقشې څخه ګټه واخیستلی شي. | |
| **۳– د زده کړې د لاروچارو (میتودونو) وړاندیزونه** | تشریح کول، لوستل، سوال او ځواب او ډله ییز بحث کول | |
| **۴– د زده کړې مرستندویه توکي** | د سویلي امریکا ترانسپورتي نقشه، د لوست کتاب، د ښوونکي لارښود کتاب توره دړه او تباشیر | |
| **۵– ارزونه** | شفاهي، لیکلي له ټولګي څخه د بهر فعالیت | |
| **۶– په ټولګي کې د درس ورکولو فعالیتونه** | **پیلوونکي فعالیتونه:** ټولګي ته په مروجه توګه ننوتل (سلام او روغبړ کول) دټولګي تنظیم، د حاضري اخیستل، د تیر لوست ارزونه، د زده کوونکو پواسطه له ټولګي څخه د بهر فعالیت وړاندې کول.<br>**هڅوونکي فعالیتونه:** په توره دړه د سر لیک لیکنه، ټولګي مخې ته د جنوبې امریکا د ترانسپورتي نقشې ځړول.<br>**هڅوونکې پوښتنه:** په سویلي امریکا کې ولې ځمکني ترانسپورت ښه وده او پرمختګ نه دی کړی؟ | ۵ دقیقې<br><br>۵ دقیقې |

| ۷- د ښوونکي درسي فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کونکي د زده کړې فعالیت | وخت |
|---|---|---|
| ● له پیلوونکي او هڅوونکي فعالیت څخه وروسته د زده کوونکو پام د جنوبي امریکا په نقشه کې د اندیز د غرونو او استوایي ګڼ ځنګلونو موقعیت ته راواړئ چې د ځمکني ترانسپورت په پرمختیا کې خنډونه منځته راوړي دي.<br>● په چوپه خوله د نوي لوست د لوستلو لارښوونه کوي.<br>● د زده کوونکو پوښتنو ته ځوابونه ورکوي.<br>● له زده کوونکو څخه پوښتنې کوي او ځوابونه یې په توره دړه لیکي.<br>۱- د اوسپنې کرښې د جنوبي امریکا په کومو سیمو کې ډیرې پر مخ تللیي دي؟<br>۲- د جنوبي امریکا د اوسپنو مهمې کرښې کومې دي؟<br>۳- په جنوبي امریکا کې ولې د اوبو ترانسپورت پرمختیا کړې ده.<br>۴- کوم عوامل ددې لویې وچې د هوایي ترانسپورت د پر مختګ سبب شوي دي؟<br>● درس راټولوي او لنډیزیې وایي.<br>●زده کوونکي په ډلو ویشي چې د جنوبي امریکا د ځمکني ترانسپورت د ستونزو په هکله بحث وکړي.<br>● د ډله ییز فعالیت پایلې د خپلو معلوماتو له مخې خلاصه کوي.<br>● د ارزونې لپاره د لوست له ورستنیو پوښتنو څخه ګټه اخلي.<br>له ټولګي څخه د بهر فعالیت لارښونه کوي. | ● نقشې او د ښونکي تشریحاتو ته ځیر وي<br>● په چوپه خوله نوی لوست لولي او هغه څه چې نه پوهیږي د ښوونکي څخه پوښتنه کوي.<br>● ځوابونه ورکوي<br>۱- دریدو جنبرو په شاوخواکې د قهوی په تولیدی سیمو کې او د بونس ایرس په شاوخواکی د پامپاس په منطقه کې<br>۲- د هیوادونو تر منځ د اوسپنو د کرښو یادونه کوي.<br>۳- سیندونه یې په زیات واټن د بیړیو چلولو وړ دي. او د نړۍ د سمندرونو تر منځ ښه موقعیت لري.<br>۴- د ځمکنیو لارو د ستونزو په سبب یې پرمختګ کړی دی.<br>● په ډلو کی تنظیم کیږي او په ټاکلی موضوع په خپل منځ کې بحث کوي او پایلې ټولګی والو ته بیانوي.<br>● ځوابونه ورکوي. | ۳۵<br>دقیقي |

**۸- د هڅوونکې پوښتنې ځواب**

د اندیز غرونو او د استوایي ګڼو ځنګلونو شتوالي د ځمکني ترانسپورت خنډونه جوړوي.

د لوست د ورستنیو پوښتنو ځوابونه

۱- د غرونو او ځنګلونو شتوالی.

۲- د ریو دوجنیرو په شاوخواکې د برازیل د قهوې په تولیدي سیمو کې او د بونس ایرس په شاوخواکې د ارجنتاین د پامپاس په حاصل خیزو ځمکو کې پراختیا ي موندلې ده.

۳- څرنګه چې د هغې لویې وچې له اوبو څخه ډک او اوږده سیندونه په طبیعي توګه د بیړیو چلولو وړ دي او د نړۍ دسمندرونو ترمنځ ښه موقعیت لري.

۴- د ځمکني ترانسپورت په مخ کې شته خنډونه د نني او نړیوال هوایي ترانسپورت د پرمختګ سبب شوي دي.

**۹- د ښونکي لپاره اضافي معلومات**

**د اوسپنو کرښې**

د اوسپنو په کرښو باندې د وړلو او راوړ د ارزانۍ په سبب ارزښت پیداکړی دی. د نفوسو په ډکو او صنعتي سیمو کې د اوسپنو د چټکو نقلیاتي وسیلو اړتیاوي. د مسافرینو، د پستی (مراسلاتو)، د با ارزښته مالونو یا هغو توکو ته چې بایـــد ژر مقصد ته ورسیږي د وړلو لپاره یې د اوسپنې د کرښو څخه ګټه اخیستل کیږي د اوسپنو کرښې د ځمکنـــي ترانـــسپورت ډیره چټکه وسیله ده.